# کابل

## میاشتنی مجله

### دافغانستان دعلومو اکاډیمی

دژبو اوادبیاتو انستیتوټ

پښتو ټولنه

مسؤول مدیر : پوهنیار محمد صابر
مهتمم : فرهاد ظریفی

# کابل

علمي، ادبي، اجتماعي، فلسفي او هنري میاشتنۍ مجله


لیکونکي ډله:

۱- پوهندوی دوکتور ګل محمد نورزی
۲- څېړنوال دوکتور سیدالشاه پولاد
۳- څېړندوی محمد صدیق روهي

---

پرله پسې ګڼه ۷۱۴ د ۱۳۵۸ کال قوس د میلادی ۱۹۷۹ نوامبر او دسامبر

---

څېړنوال دوست شینواري

# په روسیه کې د خیالي سوسیالیزم

## لنډه تاریخچه

(۲)

### لومړی انقلابي موسسه:

د تزاري رژیم د نسکورولو او د هغه د ظلم د تورجال نه د بیوزلو بزګرو د خلاصون او د اوتوپیک سوسیالیزم د مفکورې د خپرولو له پاره په روسیه کې وخت په وخت ډېرې انقلابي موسسې هم جوړې شوې دي چې د هغو په جمله کې د بوتاشیویچ پتراشیفسکي لومړی موسسه د تاریخي قدامت له پلوه تر ټولو لومړی موسسه ده. د روسیې د هغه وخت په پای تخت پترزبورګ - (اوسني لیننګراد) کې جوړه شوې وه او د اوتوپیک سوسیالیزم د ایډیالوژۍ خپرولو ته یې ملا تړلې وه.

دغه موسسه د مشهور مبارز موسس بوتاشیفسکي پتراشیویچ د موسسې په نامه یادېږي.

په دغه موسسه کې چې په (۱۸۴۵) کې جوړه او تر (۱۸۴۹) کال پورې یې دوام وکړ د روسیې نامتو لیکوالان شامل وو، لکه داستایفسکي، پلیشیف، پالم پشنیسکوف، خانیکوف او نور.

د دغې موسسې د غړو سیاسي نظر د بېلنسکي او ګېرځن د سیاسي نظر تر اغېزې لاندې تشکیل کړی وو او همدا رنګه د فورییې د اوتوپیک سوسیالیزم له ایډیالوژي

ځله مشانړ وو. د دغې موسسې غړو په پټه ډول په پتروسبه کې د اوتوپیک سوسیالیزم ایډیالوژي خوره کړي.

بوتاشویچ پتراشفسکي د مایکوف په ملګرتیا په (۱۸۴۵ - ۱۸۴۶) کلو کې «په روسي ژبه کې د دخیلو پردیو لغاتو جیبي قاموس» (په دوو برخو کې) خپور کړ چې په هغه کې د داوړن سین سیمون، فوریې او اورو او نورو سوسیالیستانو نظریات د تعمیم له پاره په پرده کې وړاندې شوي وو.

خپله بوتاشویچ پتراشفسکي، خانیکوف او کاشکین د موسسې په رادیکال (کیڼ) اړخ کې ولاړ وو. داسپا یفسکي او پالم معتدل او منځنی دریځ درلود. درادیکالو غړو غوښتنه داوه چې بزګران دې سره له هغو ځمکو چې کار پرې کوي خپلواک شي، د سرو.ژ اصول دې سمدستي لغوه شي او د تزاري مطلق العنان رژیم په ځای دې جمهوري رژیم ټینګ شي.

په فرانسه کې په (۱۸۴۸) کال د بورژوازي انقلاب ماتې په روسیه کې ارتجاع راوپښه او فعاله کړه.

تر (۱۸۵۵) کال پورې په روسیه کې د ظلم او استبداد توره ګمبله وغوړوله د مترقي افکارو خاوندان یې ټول وټکول چې د هغو په جمله کې یې د دغې موسسې غړي هم وځپل. د دغې موسسې په شلو تنو غړو باندې یې د بوتا-شویچ پتراشفسکي او داسپا یفسکي په شمول د اعدام حکم وکړ. دغه کسان د اعدام محضر ته بوتل شول. عسکرو د توپکو په ماشو ګوتې اېښې وې او د اورېل امر ته منتظر وو. په دغسې وروستیو شیبو کې د تزار د (مهرباني) فرمان را ورسید چې د اعدام جزا یې سایبریا ته په تبعید او په شاقه کارونو بدله کړه (۱)

داو، د انقلابي دموکراتانو حال.

## نرودنیکان :

د روسیې د اوتوپیک سوسیالیزم په تاریخ کې نرودنیکان هم مهم ځای لري. د تېرې پېړۍ په اوومه لسیزه کې د نرودنیکانو د سیاسي نظر خورا مشهور او نامتو کسان ب . الیکسیف، ا . ژیلیابوف، م . مروزوف، و . فیګنیر،

---

۱-(د نولسمې پیړۍ د روسي ادب تاریخ لومړی ټوک) (۴۳۰-۴۳۱) مخونه.

س. خلتورین ، پاکونین ، تکاچوف مینکوین ، پیروفسکایا ، فیلسرو ولسکی ، پ. لاوروف او نور وو . خصوصاً د وروستیو دوو تنو په ټولنیز لړی لید باندې د لویدیځې اروپا د هغو مترقي اجتماعي افکارو زیاته اغیزه موجوده وه چې لومړي انترناسیونال یې هر کندوي و . (۱)

د سرواژ د ظالمانه اصولو له الغاء نه وروسته په روسیه کې انقلابي نهضت ډیر کړندی شو چې په هغه کې ستر رول نرود نیکانو لوباوه . دوی ته ځکه (نرود نیکان ـ خلقیان) ویل کېدي چې (نرود ـ Narod ) د (خلق) په معنا دی او د هغه وخت انقلابیانو د خلکو له حقوقو څخه دفاع اود دوی خپلواکی ته ځانونه بخښلي وو . دا یو پراخه سیاسي او اجتماعي نهضت و چې ډیري څانګې یې درلې .

د انقلابي نرود نیکانو سره تزاري رژیم بې رحمه او سخت چلند کاوه . ددوی په ځوړندولو ، بندي کولو ، ټکولو ، سایبریا ته شړلو ، اوشاقه کارونو ته له مجبورولو څخه یې ډډه نه کوله .

دوی که څه هم د ټولنې په بنیادي اوښتون کې د پرولتیاریانو په تاریخي انقلابي اهمیت نه پوهېدل خو سره له دې هم ځینو یې د فابریکو او صنعتي موسسو د کارګرانو تر منځه د انقلاب له پاره تبلیغات کول .

د (۱۸۷۰) کلونو نرود نیکانو د روسیې د انقلابي نهضت په پراختیا کې ستره اغیزه درلوده . خو هغه لاره سمه نه وه چې دوی د انقلاب له پاره غوره کړې وه .

نرود نیکان که څه هم د انقلابي نهضت له نظره د چیرنیشیفسکی د اغیزې لاندې وو خو په ډیرو برخو کې له چیرنیشیفسکی څخه ډېر وروسته پاتې وو. مثلاً: چیرنیشیفسکی د سوسیالیزم په لارکې دسیاسي آزادی له پاره مبارزه ضروري ګڼله . حال داچې نرود نیکانو دسیاسي آزادی له پاره مبارزه د بورژوازۍ په ګټه بلله . دوی د پانګوالی هر مترقي حرکت رداوه . د فلسفې له نظره د نرود نیکانو

---

۱ـ (علمي کمونیزم) (۲۵-۲۶) مخونه .

په سوبجیکتیف ((ذهني)) مکتب کې داګنوستیزم (لاادریه) فلسفې او نورو
ایډیالستي مکتبونو لکه نیوکانتیزم، ماخیزم پیروي کیدله. دوی د ماتریالستانو
په مقابل کې د ایډیالستي فلسفې د پوزیتیو یستانو، نیوکانتیستانو او ماخیستانو
دلایل تکرارول.

چیرنیشیفسکي د ټولنې تغییر او اوښتون یو تاریخي ضرورت ګاڼه، نرودنیکانو
په دې باب مجرد ایډیالونه وړاندې کول. په سوسیالوژۍ کې د سوبجکتیف
میتود په مرسته نرودنیکانو کوښښ کاوه چې دخپلې فیوډالي ټولنې له پاره دغیر
کاپیټالیستي ودې امکان اثبات کړي. دوی که څه هم ظاهراً دتاریخ په جریان
کې دخلکو د پرګنو له اغیزې څخه منکر نه وو خو د پرګنو حرکت او غورځنګ یې
د منورینو د اقلیت د اغیزې پورې مربوط ګاڼه.

د نرودنیکانو د اقتصادي تیوري اساسي تیزس دا وچې ثابته کړي چې د بزګرو
کوچنۍ ګروندې (د خلکو تولید) د پانګوالۍ په مقابل (انتي تیز) لوري کې
ځای لري (۱)

ددوی په نظر شخصیتونه (قهرمانان) د تاریخ جوړوونکي دي او پرګنې باید
دخپلو دغو قهرمانانو د امر تابع وي او د هغوی په لارښوونه کار وکړي. دوی
په روسیه کې د پانګوالۍ پراختیا یوه اتفاقي پیښه ګڼله او کوم اهمیت یې نه
ورکاوه او له دې امله د کارګرو له انقلابي اغیزې څخه منکر وو. (۲)

په (۱۸۷۴) کال کې نرودنیکانو دخپلې ایډیالوژۍ دعملي کولو له پاره
یو ستر ګام پورته کړ هغه دا چې ددوی منورین او په خاص ډول محصلین په کلیو
او بانډو کې خواره شول چې د تزاري رژیم د نسکورولو له پاره بزګران انقلاب
او د سوسیالیستي ټولنې جوړولو ته راپورته کړي. خو کلیوالي بزګران ددوی
په مطلب چندانه پوهیدل او نه یې باور پرې کاوه. تزاري رژیم په سلګو او
انقلابیان بندیان کړل. خو دغې ناکامۍ دوی ناهیلي او مایوس نه کړل.

---

۱- (فلسفي قاموس) د (نرود پنچستوه) کلمه.

۲- (د ک. پ. اس. اس تاریخ) (۱۷) مخ.

د(۱۸۷۶) کال په پای کې نرو دنیکانو د(زمکه او اراده) په نامه یوه مؤسسه جوړه کړه. دغې موسسې دخپلو پلویانو له پاره په کلیو او بانډو کې دایمي استوګنځایونه جوړول چې کوندي په دغه توګه کلیوالو بزګرانو ته نژدې او له هغوی سره ښه مفاهمه وکړای شي، دهغوی باور ترلاسه کړي او هغوی انقلاب ته تیار کړي. خو دغه اقدام هم کومه ګټوره نتیجه ورنه کړه.

په (۱۸۷۹) کال کې د(زمکه او اراده) موسسه تجزیه شوه. دنرو د نیکانو اقلیت په زاړه فکر پاتې شو او دسیاسي ازادی له پاره دمبارزې چې هغه یې د بورژوازي په ګټه ګڼله، ردوله. دغې ډلې چې په بزګرانو باندې دملاکانو دزمکو په شمول دټولو زمکو دبیا اوله سره ویش تبلیغ کاوه د(توروویش) په نامه یې یوه موسسه جوړه کړه.

دنرو دنیکانو اکثریت یوه بله مؤسسه جوړه کړه چې «خلقي اراده» نومېده. دغه موسسه د تزاري رژیم سره په مبارزه کې یوګام وړاندې لاړه. خو ددوی ستره اشتباه داوه چې په سیاسي مبارزه کې یې دخلکو دپرګنو ګډون ته اهمیت نه ورکاوه بلکې دانفرادي ترور لاره یې غوره کړه. دوی فکر کاوه چې په دغه توګه به د تزاري رژیم ستر شخصیتونه له منځه یوسي او قدرت به ترلاسه کړي.

دجهاني کارګرې غورځنګ مشرانو دمطلق العنان تزاري رژیم او دسرواژ داستبدادي اصولو سره په مبارزه کې د(خلقي واك) دموسسې دپیروانو نرو- دنیکانو ستر خدمت ته په ډېر درناوي کتل (۱) خو ددوی دانفرادي ترور اقداماتو هغه وخت انقلابي مبارزې ته سخت زیان ورساوه ځکه چې دا وخت انقلابي نهضت اولس ته ورننوتی و خو ددوی دا اقداماتو له امله تزاري رژیم هغه سخت وټکاوه او هغه یې دماتې سره مخامخ کړه.

**د کارګري نهضت پیدایښت:** داوخت په روسیه کې کارګري نهضت هم راپیدا شوی و. لا په (۱۸۶۰) کال کې دوحشیانه استثمار په مقابل کې دکارګرو اعتصابونه او نارامی پیل شوې وو. دغه اعتصابونه په اوو مه

---

۱- (دك. پ. اس. اس تاریخ) (۱۹) مخ.

لسیزه کې ډېر زیات شوی وو. د لیمګړ و احصائیو له مخې په (۱۸۷۰ - ۱۸۷۹) کلونو کې د کارګرو (۳۲۶) ځله اعتصابونه او اعتشاشونه ثبت شوي دي چې تر څنګه وخته که څه هم په نامنظم او غیر متشکل ډول وو خو د منظمو او متشکلو اعتصابونو نطفه وه (۱).

دغه وخت دانقلابي ځوا مخکښ د (خلقي واك) نرود نیکان او هغه کارګران چې دوی داغېزې لاندې راغلي وو. نورو کارګرانو په ډېر دقت سره د خپلې طبقې د بد مرغی عوامل څېړل او له هغو څخه دخلاصون لاره یې لټوله.

هغوی داوخت د لومړي انترناسیونال (م ۱۸٦۴) او په اروپا کې د کارګري ګوند - ونو او د هغوی دمبارزو په باره کې کم او زیات معلومات لرل. دوی ته دجهاني کارګري ګوندونو د نشرات په روسي ژبه داثارو ترجمې وررسېدلې. دوی داوخت د سیاسي موسسو په جوړولو لاس پورې کړی و چې لومړی موسسه یې «د جنوبي روسیې د کارګرانو اتحادیه» وه چې په (۱۸۷۰) کال کې په اډیسه کې جوړه شوه او موسس یې زاسلاوسکي و او تقریباً دوه سوه تنو کارګرانو یکې غړیتوب درلود - او په ځینو نورو ښارونو کې دون زستوف، تګانروګ خارکوف اورول کې یې پلویان لرل. دغه موسسه له یوه کال فعالیت نه وروسته تزاري پولیسو محوه کړه.

البته په دغه مؤسسه باندې هم د نرود نیکانو څه ناڅه اغېزه پرته وه مثلاً دوی هم غوښتل چې خپلو پلوي کارګرانو ته په کلیو او بانډو کې دایمي کار وغالي جوړ کړي او هلته یې له بزګرانو سره یوځای میشته کړي.

د اوومې لسیزې په نیمایی کې په پطربورګ (اوسني لیننګراد) کې هم د «روسي کارګرانو شمالي اتحادیه» په نامه موسسه جوړه شوه چې مؤسسین یې انقلابي کارګران لکه ویکتور اوبنورسکي او ستیپان خلتورین وو. ددوی په تبلیغاتو کې د پرولیتاریا نو بین المللي طبقاتي یووالي لوی ځای درلود او دا بوول کېده چې دغه یووالي په خپلو نظریاتو او پراګرامونو کې د لویدیځ سوسیال دموکرات ګوندونو ته نژدې دي کېږي.

---

۱- (د ك. پ. اس. اس تاریخ) (۱۹) مخ.

په دغه اتحادیه کې هم نژدې د روسو ونو کار ګرانو غړ یتوب د رلود .

په (۱۸۷۹- ۱۸۸۰) کلو نو کې تزا ري پو لیسو دغه اتحادیه په چکاره ډول ختمه کړه خوله زمکې لاندې فعالیتو له یې روان وو (۱) .

د دغې دو سسې کاوګران هم دنرود نیکا نو د ایډیالوژي د اغیزې لاندې وو . مثلا هغه وخت چې دغه اتحادیه وتکو ل شو نا منتو اوو تلې انقلابي کاوګر خلتورین په پرګنو کې له انقلابي مبارزې هغه لاس واخیست او د نرود نیکانو دمبارزې پخوانۍ غلطه لار (انفرادي ترور) یې غوره کړه . تر دغه وخته د پرولیتاري مبارزې لاره د نرود نیکانو دمبارزې له لارې جلا کېدای له شوه د دغه کار له پاره لازمه وه چې کاوګرطبقه د نرود نیکانو د بورژوازۍ له زړې ایډیالوژۍ څخه خان خلاص کړي او په خپله علمی انقلابي ایډیالوژۍ سنبال شي .

دا کار ډېر ګران او برلاسي له وو . په روسیه کې دعلمی کارګری ایډیالوژۍ سره د کارګرانو اشنایي ډېره کړندۍ وه دمترقي فلسفي دموسس له اثارو سره په (۱۸۴۰ - ۱۸۵۰) کلونو کې اشنايي زیاته شوې وه خو په اساسي توګه د دوی اثار د ډېرې پېړ ی له او ومې لسیزې څخه وروسته دروسیې په انقلابي حلقو کې په منظم ډول خپرېدل . خصوصاً په دې باره کې د کاپیتال لومړی ټوک چې په (۱۸۷۲) کال کې په روسي ژبه خپور شوژجتنه ډېره اغیزه وکړه حتی په اړه کې د کاپیتال دا لومړی ترجمه وه (۲).

او په دغه صورت وخت په وخت دې ته لاره اواریده چې کاوګري تولنې د نرودنیکانو د ایډیالوژۍ له اغیزې څخه خان وو په وروخلاص کړي او په پرولیتاري ایډیالوژۍ سمبال شي .

## په روسیه کې لومړۍ پرولیتاري مؤسسه

د (تورویش) دموسسی د نرود نیکانو یوه ډله چې له خپل ټاټوبي څخه مهاجرت ته مجبوره شوې وه په ډېرجدیت دانقلابي علمی ایډیالوژۍ په زده کړه پیل وکړ

---

۱ - (دک . پ . اس . اس تاریخ) (۲۰) مخ

۲ - (دک. پ. اس اس تا ریخ) (۲۳) مخ .

او د لویدیځې اروپا له کارګري نهضتونو سره په دور د وقت بلد شول. د (۱۸۸۳) کال د سپتامبر په (۲۵) نیټه دوی خپل پروګرام او د نارودنیکانو سره خپله بیخي پرېکړه او د روسي کارګرانو له پاره د یوه خاص ګوند د جوړولو ضرورت اعلام کړ.

دغې ډلې په خپل پروګرام کې د علمي انقلابي ایډیالوژۍ خپرول، د حاکمې طبقې څنډل او له هغې سره طبقاتي مبارزه کول، په خلکو کې د انقلابي افکارو خپرول اعلام کړل.

دا په روسیه کې لومړی انقلابي کارګري موسسه وه چې د کارګرانو نجات نومېده، مؤسس او مشران یې پلیخانوف او یګناتوف، اکسلرود، زاسولیچ، دیچ او داسې نور پیاوړي انقلابیان پکې غړي وو.

دغې موسسې په پټه د کارګر او د جهاني انقلابي مشرانو آثار په روسي ژبه ترجمه او خپرول او د هغوی په څنګ کې یې خپل مترقي آثار هم خپرول. په دې باب د پلیخانوف (سوسیالیزم او سیاسي مبارزه) لومړی اثر دی چې په (۱۸۸۳) کال کې خپور شو.

د دې له پاره چې د نارودنیکانو د ایډیالوژۍ غلطي په ډاګه کړي د روسیې د اقتصادي پراختیا څېړلو ته یې هم پام وشو. په دې باب د پلیخانوف (زموږ بې اتفاقي) لوی اثر چې په (۱۸۸۵) کال کې خپور شو خورا تاریخي ارزښت لري. دا لومړنی اثر و چې له علمي نظره یې د روسیې اقتصادي څېړنه وړاندې کړه. پلیخانوف د نارودنیکانو دغه نظر په بیخي رد کړ چې ویل یې (په روسیه کې د پانګوالي پراختیا یوه تصادفي پېښه ده) او د هغې د پراختیا له پاره یې امکانات نه لیدل.

د کارګرانو نجات ټولنې د نارودنیکانو د ایډیالوژۍ له غلطو خواو سره کلکه مبارزه پیل کړه او لیغ په لمغه یې سوسیالیزم ته د روسیې انتقال رد کړ. پلیخانوف د نارودنیکانو دغه ستره اشتباه چې ګوندي کارګره طبقه انقلابي لومړی رول نه لري رد کړه. ده ثابته کړه چې بزګران نه بلکې کارګر طبقه لومړی انقلابي قوه ده.

د پلیخانوف په مشرۍ «د کارګرانو نجات» د روسیې په سیاسي تاریخ کې ستر رول
ولوباوه. لوراوه نرودنیکانو او د روسیې د کارګري انقلابي نهضت تر منځه د
بېلتون کرښه واکښل شوه خو سره له دې هم دوی لېره پاتې وه اغېزه په کار-
ګرانو باندې پرته وه چې داکار د ستر انقلاب د لارښود د مشر ورور الیکساندر
او لیانوف د ډلې عمل یې ښه څرګندوی دی. د دغې ډلې غړي د تیوري له مخې
سوسیالستان وو، چې سوسیالیزم ته یې د پانګوالۍ د تکامل د لازمي زېږندې په
نظر کتل او کارګر طبقه یې انقلابي قوه بلله. خو په عمل کې د ترور په عملیاتو
بوخت وو. دغې ډلې ځان ته «د خلقي واک د ګوند ترورېستي څانګه» ویله. دوی
د (۱۸۸۷) کال د مارچ په لومړۍ نېټه د تزار د وژلو ناکامه توطیه جوړه کړه.
او بیا د الیکساندر اولیانوف په شمول د دغې ډلې مشران ووژل شول(۱) د کارګرو
نجات مؤسسې د نرودنیکانو په ضد سخته ایډیالوژیکي مبارزه پرمخ بیوله او ورو په
ورو یې د دوی د سیاسي فعالیت ساحه ور تنګه کړه.

د تېرې پېړۍ د اتمې لسیزې په منځ کې د نرودنیکانو په ایډیالوژۍ کې
د لیبرالي ریفورم نظریه غالبه شوه. د نرودنیکانو ځینو مفکرینو په ټولنه کې
د پانګوالۍ د تحول او د بزګرو د طبقه بندۍ حقیقت ته غاړه کښېښوده خو د پانګوالۍ
د پراختیا پېژندنه د دوی په نظر د اوتوپیزم او ارتجاعي طرحې سره یوځای وه.

د نرودنیکانو لیبرالیستو مشرانو د علمي سوسیالیزم په ضد په کلکه مبارزه
پیل وکړ خو په دغه مبارزه کې دوی بېخي ختم شول.

د شلمې پېړۍ په سر کې د بزګرو پر له پسې قیامونو او د (۱۹۰۵ - ۱۹۰۷)
کلونو انقلاب د نرودنیکانو له پاره داسې شرایط برابر کړل چې په بېلو بېلو
ګوندونو ووېشل شي چې د هغو په جمله کې د (اسېرانو = ESRS کیڼو افراطیانو)
ګوند د یادونې وړ دی. د دغې ډلې یوه ګډه وډه ایډیالوژي لرله. د هغوی په ایډیا-
لوژۍ کې د نرودنیکانو زاړه دګمونه د علمي سوسیالیزم اړول شوو نظریاتو سره ګډ وو

---

۱- (د ک. پ. ۱ س. ۱ م تاریخ) (۲۵) مخ.

شوي وو (۲) دا کتوبر د انقلاب په بریسره نرود نیکانو تولي خانګې پای ته ورسیدې.

د نولسمې پېړۍ (۷۰) کلونو نرود نیکان «د انقلابې لښکر سپه سالاران» وو خود انقلاب لاره یې غلطه کړې وه. دوی خپل هدف (انقلاب) ته ونه رسید ل خودروسیې په کارګري نهضت باندې یې ستره اغیزه وکړه. دوی په کارګرو کې پرولتاریې احساس پیدا نه کړ خود موکراسی او خپلواکی له پاره د مبارزې شعور یې پکې راوپښ کړ او ددوی د انقلابي افکارو داغیزې لاندې ستر انقلابي قهرمان کارګران لکه الیکسیف س. خلتورین ی. اوبنورسکی ا. اولیانوف اونور وروزل شول چې د روسیې په پرولیتاري تاریخ کې نه هیرېدو نکی ځای لري،

ددوی په باب باید په لنډ ډول وویل شي چې د نرود نیکانو سیاسي نهضت چې د نولسمې پېړۍ په (۶۰ - ۷۰) کلونو کې راپیدا شو خوراښه انقلابي و، خو په (۸۰ - ۹۰) کلونو کې یې انقلابي خصوصیت له لاسه ورکړ او د لیبرالیزم په خوا لاړ او بالاخره په روسیه کې د مترقي علمي افکارو په مخکې خنډ شو.

د روسیې او توپیزم د نورې نړۍ له او توپیزم سره څرګند توپیر در لود: د روسیې او توپیزم انقلابي خاصیت در لود.

د دغه او توپیزم مشر ان د دې نتیجې ته رسیدلي وو چې د تزاري رژیم د لسکورو لو اود بزګرو د خپلواک کولو له پاره طبقاتي مبارزه او انقلاب حتمي دی. خو په دې باب یې دا سهو سترګې بزګري پرګنو او یا پیلو پیلو اشخاصو ته اوښتې چې همدغه ددوی دا توپیزم مهم ټکی دی.

## ماخذونه:


۱ - دشوروي اتحاد دکمونیستي ګوند تاریخ - (دل. پ ا س. س تاریخ) مسکو (۱۹۶۳) کال.

۲ - د (علمي کمونیزم اساسونه) مسکو (۱۹۶۶) کال.

۳ - (دفلسفي قاموس) - مسکو (۱۹۶۳) کال.

٤ - (دنولسمې پېړۍ دروسي ادب تاریخ) لومړی ټوک مسکو (۱۹۶۰) کال.

٥ - (دنولسمې پېړۍ ددویمې نیمايي دروسي ادب تاریخ) مسکو (۱۹۶۶) کال.


۲ - فلسفي قاموس د نرود (نیجستوه) کلمه.

انټرنیشنل افیرز، اتمه گڼه، ۱۹۷۹
لیکوال: وی. الانوف.
ژباړونکی: علی محمد منگل

# دلبنان د تراژیدی سرچینی ته یو نظر

له څو کلونو راهیسې په لبنان کې د تودې جگړې د اور لمن پراخه شوې او د هغه هېواد کوټ کوټ ته یې لمبې رسیدلې دي. د هغو وسله والو نښتو له امله چې د لبنان د مرتجعینو له خوا د اسرائیلو په مخامخ مرسته پیل شوې، په زرگونو تنه بې گناه خلک وژل شوي او د هېواد اقتصاد یې په ډېر زیاته اندازه سره تاوانی کړی دی. دغه شان د دغو شومو جگړو په نتیجه کې د هغه هېواد زیات ښار اوسېدونکی له خپلو استوگنځیو څخه بې ځایه شوي او خپل کور و اله یې خوشي کړي دي او تر اوسه پورې دلته دښمنی او د مرتجعینو په لمسونه او د امپریالیزم د گوډاگیانو په مرسته روانه ده او درانده ځانی او مالی تاوانونه پېښېږي د لبنان غم لړلې پېښې خو اساسا د منځنی ختیځ د شخړو او کشالو په نتیجه کې منځ ته راغلې دي، چې په دې واسطه په دغه انسانی سیمه کې نړیواله فضا له ډېرې مودې راهیسې خړه پړه شوې ده او لا تر اوسه په همغه شان داخرابه او انسانانو ژوندکې وضعه دوام لري. په اوسنیو کلونو کې د منځنی

خونړۍ دجګړې پوخصوصیت دادی چې داټول جګړې د دغې سیمې تمایلی ځمکو
رژیمونو له خوا پیل شوي دي ، دا په دې معنا چې دامپریالیزم دغه ګوډاګی
رژیمونه دامپریالیستي اوصیهونیستي پلانونو دعملي کیدو له پاره د ملي پاڅونو
سره په ښکاره ښکېل شوي دي اوهڅه کوي چې ددغې سیمې ملي آزادي غوښتونکي
پاڅونونه دامپریالیستي غوښتنو سره سم په کلکه وټکوي .

په لبنان کې دوسله والو ښکرو له پیښېدونه څلور کاله تیرېږي ، خو لا تر
او سه پورې په دغه هیواد کې د آرامۍ هیلې او آرزوګانې لرې معلومېږي او په
حقیقت کې لبنان دمنځنې ختیځ د بحران د پوړول بارومتر بڼه لري . په هر وخت
کې چې دعربي خلکو دهیلو پرخلاف له امپریالیزم سره د دغې سیمې ارتجاعی
کړۍ د تسلیمېدو معامله کوي ، په دغه وخت او حال کې هرومرو په لبنان کې د
هغو کسانو پرضد ملي شخړه پیل کیږي چې په دغه سیمه کې دامپریالیزم له نفوذ
سره مخالف دي ، دمثال په توګه آیا په ۱۹۷۵ کال کې دلبنان دمسیحیانو دارتجاعی
ډلو هغه جګړې چې د فلسطین د آزادۍ غوښتونکو په مقابل کې یې پیل کړې، دسینا په
باب داسرائیلو او مصر دخاینکارې تړاوی سره سمون نه خوري ؟ آیا په اور شلیم کې
دجمهور رئیس سادات له کتنې وروسته په لبنان کې بیا دجګړې اور بل شوی نه
دی؟ او آیا د کمپ دیوید په موافقو پسې داټول حالات راغلي نه دي ؟ په ځواب
کې باید ووایو چې هو! همدا سې حالات ددغو ارتجاعي کړیو او د امپریالیزم
ګوډاګیو له تسلیمید و وروسته په لبنان کې په جوته سره منځ ته راغلي دي .

امپریالیستي قواوې هغه وخت په لبنان کې دجګړې سره علاقه مندې شوې
کله چې د ۱۹۷۰ په اوړي سرکې په دغه هیواد کې دفلسطین آزادی غوښتونکی
نهضت دیوه مرکز بڼه پیدا کړه داوخت دهغې ارخ عیسوی مشرانو ادعاو کړه
چې دفلسطین نظامي او سیاسي شته والی په لبنان کې دیوه داسې ام مثال لري
چې دلبنان دخلکو هوساېنې ته له منځه یوسي. داټول ادعا او بې ځایه پلمه داسرائیلو
دمشرانو له خوا هم په تبلیغاتو کې څرګنده شوه او فلسطینیان یې په دې تورن
کړل چې دوی په لبنان کې ناورین پېښې ته لاس اچوي .

دا مو باید په یاد وي چې د فلسطینیانو راتګ لبنان ته د نړیوال صهیونیزم د فشارونو له مخې منځ ته راغلی ، څرنګه چې یهود و په فلسطین کې د یوه عربي دولت د جوړېدو سره ۱۹۴۸ کال کې مخالفت وکړ نو له دې امله هغوی یو ملیون (اصلي) اوسېدونکي له دغې سیمې څخه په زور سره وشړل ، د دې شړل شویو فلسطینیانو څخه سل زره تنه د لبنان خوا ته کډه وکړه او هلته یې ځانونو ته کېمپونه او پناه ګاوې جوړې کړې.

تر هغه وخته پورې چې فلسطیني کډوال په خپلو کمپو کې پراته وو ، د دې ارخ اود لبنان په لوړه طبقه پورې تړلي مسیحیان هیڅکله د کډوالو په باب اندېښمن نه وو . له بله خوا لبناني بورژوازۍ له فلسطیني تراژېدۍ څخه د خپلو ځانګړو ګټو له پاره استفاده وکړه : لومړی دا چې عربو له اسرائیلو سره د اړیکو د پرېکولو په ترڅ کې خپلې ټولې مواصلاتي لارې له لوېدیزې اړۍ سره د فلسطین په ځای لبنان ته واړولې چې دې کار د لبنان مسیحي کمپرادورانو ته په زیاته اندازه ګټه ورسوله . دویم دا چې فلسطیني کمپونو د دغه هېواد د کار د دولتي قانون څخه جلا د کار منبع برابره کړه . له دې کبله وینو چې د لبنان مرتجع ټولنې په دې اساس توګه سره فلسطینیان د هغې خاورې د پاره مرغوب عامل بولي ، ښه به دا وي چې د دې په ځای دا ووایو چې فلسطینیان د لبنان د آبادۍ له پاره ګټور تمام شوي دي . په سیاسي لحاظ سره خود لبنان حکومتي ډلو فلسطینیان د ځانګړو شرایطو لاندې راوستل ، او په فلسطیني کمپو کې یې سیاسي فعالیتونه بند کړل . یوازې د ۱۹۶۰ کال په پای کې د فلسطین د مقاومت نهضت یوه ولسي قوت او قدرت ته تکامل پیدا موند ، په دې ډول فلسطینیانو د دې لوړوالي په نتیجه کې د لبنان د موجودې بورژوازۍ د دیموکراسۍ په سیوره کې یو څه فرصت او اختیار تر لاسه کړه.

که څه هم د لبنان د اوسنیو شخړو پیل هغه وخت ګڼل کېږي ، کله چې د ۱۹۷۵ کال د اپریل په دیارلسمه نېټه د لبنان فلانژیستانو د بېروت په عین الرومانانوسي حومه کې د فلسطینیانو په وړوکي سرویس باندې ډزې وکړې، خو

په حقیقت کې د دغه هیوادنۍ پالیسۍ ښکاري او بحران له دې نېټې څخه
وړاندې ریښې لري.

په ۱۹۶۷ کال کې د اسرائیلو د تیري له امله عربي ملي خوځوا کې غوښتونکو
نهضتونو کلکه ګوزارونه ولیدل، له دغو ګوزارونو څخه په لبنان کې د ښي اړخ
مسیحیانو د خپل دریځ د پیاوړتیا له پاره ښه استفاده وکړه، مسیحیانو خپلې قواوې
د دغو ګوندونو له لارې په ۱۹۶۸ کال کې غښتلې کړې: ملي لیبرال ګوند
چې مشري یې د لبنان پخوانی جمهور رئیس کامل شمعون و، د لبنان فلانژ ګوند چې
مشري یې پیر جمیل و او بالاخره دریم ګوند د ملي بلاک د ګوند په نوم یادیده.
دا درې واړه ګوندونه د لبنان د مترقي قوتونو پرضد سره متحد شول او خپلې قواوې
یې د هغو د ټکولو له پاره متمرکزې کړې. د دغو ګوندونو غوښتنه دا وه چې
د عربو او اسرائیلو په شخړو او ولانجو کې دې لبنان بې طرفي اختیار کړي،
د دوی د دغې غوښتنې د عملي کیدو له پاره دا تصمیم نیول شوی و چې د فلسطین
د مقاومت د نهضت په مقابل کې دې په کلکه سره مبارزه وشي.

په لومړي سر کې د ښي اړخ دواړو ګوندو «درې ګون یووالی» وکړای شول چې
د عربي او فلسطیني ضد شعارونو په ورکولو سره زیات شمېر مسیحیان په خپل
شا ن پسې راوکاږي او ملاتړ یې وکړي. د ښي اړخ مسیحیانو په دولتي
چوکاټ کې د خپل نفوذ څخه د کار اخستلو له امله د فلسطینیانو په مقابل
کې وسله والې مبارزې ته په کلکه سره تیاري ونیوله، د ۱۹۶۹ کال
په اپریل کې د «درې ګون یووالی» ملاتړ کوونکو په وسله والو قواوو سره
په ښکاره ډول د فلسطینیانو سره د توندې جګړې له پاره لمسونو ته لاس واچاوه.
خو په نتیجه کې د ښي اړخ د مسیحیانو لمسونې د لبنان د ولس له زیات مخالفت
سره مخامخ شوې او د هغو پلانونه شنډ او ناکامه شول، د لبنان په ډېرو ښارونو
کې په تېره بیا د بیروت، ترپولي او صیدا د ښارونو مظاهرو په څرګند ډول سره
وښوده چې فلسطینیان د مسلمانانو د ستر اکثریت او ملي وطنپالو قوتونو
له ملاتړ څخه برخورداره دي او په نتیجه کې د ۱۸۶۹ کال د نوامبر په دریمه
نېټه یاسرعرفات او د لبنان د قواو قوماندان ای. بوستانی د قاهرې تړون

لاس لیک کړ، چې د هغه له مخې د لبنان په خاوره کې د فلسطین د مقاومت نهضت اسعو کنه او پاتې کېدنه ومنل شوه.

د ۱۹۶۹ کال شخړو او ټکرونو د فلسطین د مقاومت نهضت ته کوم زیانونه رسولي شو، خو د غو حالاتو وکړای شول چې راتلونکې پېښې په دغه خاوره کې منځ ته راوړي. په دې حال کې د ښي اړخ مسیحیان په دې بریالي شول چې د دغه هېواد قواوې د فلسطین د مقاومت نهضت موجودیت ته متوجه کړي. په داسې صورت کې د مسیحیانو د «درې گون یو والی» مشرانو ادعا وکړه چې د فلسطین عناصرو په لبنان کې د قواوو توازن گډوډ کړی دی مسیحانو نه یوازې په سیاسي ساحه کې دغې مسألې ته گوته ونیوله، بلکې په مذهبي اړخونو کې یې هم دغې ستونزې ته اشاره وکړه، د ښي اړخ مسیحیانو په دې ډول لمسوونو سره وکړای شول چې د عیسوي ټولنې یوې ډلې ته چې مارونتیان بلل کېږي او دواتمکان او لوېدیځو هېوادو سره تاریخي اړیکې لري، دپاڅون لاره هواره کړه، دا ځکه مارونیتیان د دغو لمسونو په نتیجه کې په دې فکر کې شول چې گوندي فلسطیني موجودیت به په هغه خاوره کې د هغوی موقف ته تاوان ورسوي.

که څه هم د ۱۹۶۹ کال پېښې د ومره زیاتې زیانمنې نه معلومېدلې، خو وروسته یې اغېزې پسې ژورې شوې، په ۱۹۷۳ کال کې د اسرائیلو قواوو پلی کېدنو په بیروت کې د ښي اړخ عیسویانو له پاره دومره ښه پلمه شوه چې د لبنان په وسله وال پوځ کې د فلسطین د نهضت په مقابل کې یې لمسونې پسې زیاتې شوې، خو په دې وخت کې د فلسطینیانو د ریخ د دغه هېواد د مسلمانانو له خوا ښه ملاتړ شو، نو په نتیجه کې په دې ډول سره د لبنان وسله وال د دغه ملي نهضت په مقابل کې بیا شا ته تلو ته مجبور شول.

په رابطه کې د عربي مشرانو د غونډې په سمبال ښتنه د لبنان جمهور رئیس سلیمان فرانجیه د ۱۹۷۴ کال په نوامبر کې د ملگرو ملتو د عمومي غونډې په وړاندې د فلسطین د خلکو د حقوقو څخه ملاتړ څرگند کړ، ده د دغه بیان له مخې د ډېرو خلکو دا گومان وکړ چې د لبنان د دولت او فلسطین د خلکو په اړیکو کې ستونزې له منځه ولاړې او د فلسطین خلک به په آرام ډول سره په خوشالۍ دې

عمل و وځنې ژوند پیل او اختیار کړي څو لکه چې ولیدل شو مسلم د م په
همدغه وخت کې د غیر ارخ مصمم او داسې تصمیم ونیو چې د دغه په نتیجه
کې د لبنان د دوې کلنې خونړۍ جګړې اوربل شو او هغه ګومان چې د وی د دغې
پېښې داوارېدو له پاره کاوه بل رنګ غوره کړه .

د ۱۹۷۳ کال د اکتوبر جګړې په منځنۍ ختیځ کې د قواوو توازن د عربو په
ګټه بدل کړ ، له دې کبله دا په ډاګه جوته شوه چې په دغه سیمه کې د کرارۍ
د پیدا کېدو منطقي لار دا ده چې اسرائیل په بشپړه توګه له نیول شویو عربي سیمو
څخه خپلې قواوې وباسي او د فلسطین د ولس د حقوق اعاده وکړي . په ۱۹۷۴
کال د فلسطین خپلواکۍ غوښتونکي سازمان څرګنده کړه چې د فلسطین موضوع او
کشاله هغه وخت حل کېدای شي چې د ۱۹۶۷ کال په جګړو کې نیول شوې
فلسطیني ځاوره (داردن دریاب لویدیځه غاړه او د غزې اری تړته مځکه) کې یو
خپلواك فلسطیني دولت جوړ شي .

د فلسطین د خپلواکۍ بښونکي سازمان پروګرام د ۱۹۷۴ کال د اکتوبر په
میاشت کې په رباط کې د عربي دولتو د مشرانو له خوا تائید او تصویب شو او
وروسته بیا په ملګرو ملتو کې زیات اړیوال ملاتړ ترلاسه کړ، د فلسطین د خپلواکۍ
بښونکي نهضت د اجرائیې کمیټې مشر یاسر عرفات له هغې وینا وروسته چې په
ملګرو ملتو کې ایراد کړه ، عمومي اسامبلې ۳۲۳۶ لمبر پرېکړه لیک تصویب
کړ چې د هغه له مخې د فلسطین د خلکو د خود ارادیت ، خپلواکۍ او ملي حاکمیت
حق وپېژندل شو . د هغه راز په ملګرو ملتو کې د فلسطین امتیازي ډ کتونکي په توګه
په غونډو کې د ګډون حق لاس ته راوړ ، د هغو اړیا لیتوبونو د فلسطین خلکو ته ډېر
زیات ارزښت درلود ، ځکه د هغو په نتیجه کې د فلسطین خپلواکۍ غوښتونکي
سازمان د فلسطین عربي خلکو د رښتوني نماینده په توګه وپېژندل شو .

د فلسطین د آزادۍ بښونکي سازمان هڅو له دامپریالستي قوتونو او اسرائیلو
په طبع برابر نه شول ، دا ځکه د دغه سازمان په مشرۍ د فلسطین د دولت جوړېدل
دامپریالستي پلانونو په مقابل کې خنډ شمېرل کېده ، نو له دې امله د کسینجر
نرمه پالیسي په دوره هغه سره په کار ولویدله او د دغې پالیسۍ له مخې د عربي

هيوادو او ارتجاعي کړی له امپرياليستي هيوادو سره تړلي شوي دا ځکه امپرياليستي
قوتونو د دغو هيوادو ارتجاعي ډلې د فلسطين د دولت له جوړېدو څخه وېرېدلې
او دغه دولت يې د دوی د ګټو له پاره د يوه خطر په توګه وګاڼه . په دې ډول سره
امپرياليستان او د عربو ارتجاعي محفلونه د فلسطين د خپلواکۍ غوښتونکي نهضت په
مقابل کې ودرېدل او دا د خپلواکۍ غوښتونکي نهضت يې د سترګو اغزی شو .

له دغې پاليسۍ څخه د امپرياليستي قوتونو مقصد د عربو هيوادو د دغه په نظر
اړول وو چې د فلسطين د آزادۍ غوښتونکي نهضت په باب يې پيدا کړی و . د دغه شان
لوېديځو هيوادو هيله درلوده چې په منځنۍ ختيځ کې د يوې هوسا او آرامې فضا
منځ ته راتلل ګډوډ شي ، ځکه چې د دغې سيمې د منطقي حل نظريه له ذهنيتونو څخه
ووزي .

د فلسطين د خپلواکۍ غوښتونکي نهضت لانجه او سخته کړه له د سادات
د تسليمېدونکي سياست څخه وروسته نوره هم پېچلې شوه ، دا ځکه په دې ډول
امپرياليستانو او صهيونستانو ته دا موقع په لاس ورغله چې د جينوا د سولې په
پرېکړو باندې سترګې پټې کړي او هغه سوله يېزحل چې د منځنۍ ختيځ ستونزې
يې کمولې له نظره وباسي .

د مصر او اسرائيلو ترمنځ د سينا ځانګړې تړون چې په يو اړخيزه توګه يې د مصر او
اسرائيلو ترمنځ لانجه او ټکر کم کړ ، د دې سبب شوچې په منځنۍ ختيځ کې د رښتوالي
آرامۍ ملاتړ کوونکي کمزوري شي او په تېره بيا د فلسطين د خپلواکۍ غوښتونکي
سازمان او سوريې هڅې د دغه شان هوسايي له پاره پوخه مړاوې شوې. دا ځکه
د سادات له عربي ګډې جبهې څخه د راوتلو له امله نه يوازې عربي قوت او قدرت
ته زيان ورساوه ، بلکې په لبنان کې يې عيسوي مرتجعينو ته هم موقع ورکړه
چې د فلسطين دولس موقف په دغه هېواد کې کمزوری کړي او ويې ځپي .

په دغه وخت کې کله چې د لبنان په سويلي برخو باندې د اسرائيلو تېري
کوونکي برغلونه پيل شول ، نو د فلانژيستانو مشر پير جمايل د فلسطين د مقاومت
نهضت په مقابل کې يوه نوي لمسون ته لاس واچاوه ، هغه دا چې ده دری
وارې د لبنان جمهور رئيس ته لمسوونکي ليکونه وليږل چې په هغو کې يې

په لبنان کې د فلسطینیانو په وجود او شته والي باندې د رپلارادم خوښنه کړې
وه . له دې امله د ۱۹۷۵ کال د جنوري او فبروري میاشتو نه وروسته په دغه
هېواد کې دښمنۍ ډلې او قواوې په څه شان پوړل ته مخ په سمبا لېدو شوې چې
په نتیجه کې یې هغه پېښه منځته راغله ، کومه چې د مخه مو ورته اشاره
وکړه او هغه دا چې د فلسطینیانو په یوه سورلی اروبکی سروېس باندې د فلانژ پستانو
له خوا ډزې وشوې . له دې پېښې وروسته د لبنان ټولنه په دوو د ښمنو ډلو
باندې ووېشل شوه او خونړۍ شخړې یې تر منځ جوړې او منځ ته راغلې .

په لبنان کې د شلمې پېړۍ د دویمې نیمایي د لومړۍ او دریمې لسیزې
جګړې دا څرګندوي چې دغو پېښېدل دامورپالستانو په لمسونه تر سره شوي دي ،
دا په دې مفهوم کله چې د عربي آزادي غوښتونکو نهضتونو په لبنان کې سر
راپورته کړی ، نو ورسره جوخت امورپالستانو په پټو پټو پلمو سره چې وروسته
به رښا پرې واچول شي د عربي رخ مسیحیان دغو په مقابل کې لمسوي او دې ته
یې مجبوروي چې په پټو پټو چالونو سره دغو پر مخکښ مخنیوی وکړي . حتی
داهم وېلای شو چې امورپالستانو لاد پورتنیو یاد شویو نېټو څخه ډېر د مخه
په لبنان کې داسې ټولنیز شرایط چمتو کړي چې دغو ناوړه اغېزې دامورپالستانو
په ګټه تر اوسه پاتې دي . د دې له پاره چې د لبنان په موضوع باندې ښه پوه شو،
او دې ته اړ یو چې د دغه هېواد ټولنیز جوړښت ته یو ملرنه وکړو : په لبنان کې
زیات شمېر مذهبونه پالل کېږي . په عمومي ډول د لبنان ټولنه په دوو مذهبي
ډلو وېشل شوې ده ، یوه ډله چې د لبنان نیمایي نفوس یې تشکیل کړی دی ،
عیسویان دي ، بله غوره ډله مسلمانان ګڼل کېږي چې دا دواړې ډلې ددین له
مخې په ټولو سیاسي او اقتصادي خواوو کې په دوو برخو سره جلا شوې دي.
دا په دې معنا لکه څنګه چې مسلمانان او عیسویان په مذهبي لحاظ یوله بله سره
جلا کېږي ، همدا ډول په سیاسي او اقتصادي لحاظ هم هره یوه ډله د یوه
ټاکلي تناسب له مخې د اقتصاد او سیاست واکمن او څښتن دي ، د دې سیاسي
او اقتصادي وېش علت دا دی چې د دغه هېواد استثمارګره ډله غواړي چې د خپل
استثمار ددوام له پاره دملت یووالی صورت و نه موسي .

په لبنان کې دا ډول مذهبي اړیکې په اصلي توګه سره موجودې نه دي، بلکې دا ډول سیستم د څو اړخ د عیسویانو د هڅو په نتیجه کې منځ ته راغلی دی، داشان مذهبي ویش په مستقیم ډول د امپریالستي قوتونو له پالیسي سره اړیکه لري دا ځکه چې د اد امپریالستانو ډېر غوره اداري میتودونه چې وایي: بې اتفاقي واچوه او حکومت وکړه. د دې کړن لارې له مخې هغوی خپلې ګټې ډېر په چټکې تر لاسه کولای شي. په لبنان کې د دغه ډول ویش زمینه د لومړي ځل له پاره د فرانسویانو له خوا برابره شوه، فرانسویانو له مارونیتیانو سره چې په تاریخي لحاظ له لویدیځ سره نږدې دي ډېرې مرستې کړې دي چې د دغو مرستو په نتیجه کې د دغې عیسوي ډلې په لبنان کې دو کمنی او اقتدار امتیاز ترلاسه او حاصل کړې چې ترننه پورې یې پاینبت موندلی دی.

کله چې مارونیتیان په لبنان کې قدرت ته ورسېدل، په دغه وخت کې یې نو د امتیازاتو د ساتلو له پاره د مذهبي ویش سیستم په ښه شان تنظیم او پیاوړی کړ او قانوني رنګ یې ورو باښه. نن ورځ د مذهبي ویش سیستم په ټول لبنان یا د لبنان په ټولنه کې په زیاته اندازه پراخ شوی چې په دولتي جوړښت کې یې غوره ځای نیولی دی. د لبنان قوانین په ډېره جدي توګه سره د پارلمان د غړو د شمېر په برخه کې دې نسبت ته چې د عیسویانو د شپږو تنو وکیلانو په مقابل کې د مسلمانانو پنځه تنه وکیلان پارلمان ته راشي، زیاته پاملرنه کړې او کوي یې، له بلې خوا په انتخاباتي حوزو کې هر یو وکیل له خپلې ټولنې څخه د تناسب له مخې پارلمان ته لیږل کیږي، دغه حالت په جوته سره دې ته زمینه برابروي چې وکیلان یوازې د مذهبي احساساتو له مخې خپل ملاتړ زیات کړي، نو په دې ډول سره وینو چې د اقتصادي او پاټولیزو ګټو له خوا وڅخه هغوی ته وعده او تعهد کول ضروري نه بریښي.

د دولتي چوکیو په نیولو کې هم له پوهنیا کلي او معین نسبت څخه کار اخستل کیږي، له دې امله د دغو کمو په نیولو کې د مسلکي پوهې او شخصي مهارت څخه استفاده نه شي کیدای، بلکې په مذهبي اساس پورې تکیه لري. مارونیتیان په دې هېواد کې د لوړو او جګو دولتي چوکیو او پوستونو (جمهور رئیس او د پوځ قوماندان)

د استحقاق له مخې ددې توان لري چې په داخلي او خارجي سیاست کې هر ډول
بدلون په خپله خوښه منځ ته راولي، د همدې راز د دغه قدرت هڅه په کار اخیستلو سره
د خپلې ډلې ټولنې او منځنۍ طبقې ته هم پخپله شان ګټه رسولی شي. او دغه کار
ددې سبب شوی چې د لبنان په بېلو بېلو سیمو کې د تکامل له پلوه ډېر افراط او
تفریط منځ ته راغلی دا په دې مفهوم چې د عیسویانو په مربوطو سیمو کې اقتصادي
حالت ډېر لوړ دی، په داسې حال کې چې د مسلمانانو په برخو په تېره بیا په
سویل کې د ژوند اله سطحه ډېره ټیټه ده یا ټیټه ګڼل کېږي. د همو ملي
مشرانو هیله وکړه چې د ډېر ژر د مذهبي ویش سیستم له منځه ولاړ شي
دغه نوي نهضت بیا وړي عربي مشر چې کمال جملات نومېده رهبري کړ
نوموړي مشر په عین حال کې د مترقي سوسیالست ګوند مشري هم په غاړه درلوده
د لبنان کارګري ګوند د مترقي سوسیالست ګوند په ګډون د ملي او وطنپالو قوتونو
په غښتلي کېدو کې مهم رول ولوباوه دا باید ووایو چې د دغه هېواد مسلمانانو
د وطنپالو قوتونو نهضت له ځینو نورو ګوندونو څخه لکه د لبنان د کارګري
عملیاتو ګوند، ملي ټولنیز ګوند، د خپلواکو ناصریانو نهضت، بعثستان او نورو
څخه هم جوړ شوی دی.

له بلې خوا څخه وینو چې د عیسویانو په مذهبي ډله کې د کوچنۍ بورژوازي
غړي د مسلمانانو په څېر الدیښمن نه دي، دا ځکه دوی ته د سیاسي قدرت په نتیجه
کې زیاته ګټه رسېدلې ده او تل یې د ښي اړخ عیسویانو له پاره د ډوډۍ کلکې
ملاتړ کوونکې ډلې په توګه د هغوی ملا ورغېړګه کړې ده، څرنګه چې د لبنان
عیسویان په سیاسي لحاظ د نورو عربي ملکونو څخه د امپریالیزم مدروخ د پاره جلا
شوي او د امپریالیزم ګټې ساتي، نو له دې کبله دوی د مسلمانانو د ملي خپلواکۍ
غوښتونکی نهضت منځ ته راتللو ته په کرکه وکتل او د هغوی جوړېده یې د عیسویانو
سره کلکه دښمني وګڼله، عیسویانو تل د هر هغه اقدام په مقابل کې
چې په دې خاوره کې د امپریالیزم په ضد وي خورا زیات خواشیني کېدي نو په
مقابل کې امپریالستان تل هڅه کوي چې د لبنان اوسنی سیستم همداسې

پاتې شي، دا ددې له پاره چې عیسویان په دې خاوره کې له اقتصادي او سیاسي پلوه
واکمن وي او ددوی ګټې خوندي وساتلای شي، نو اوس په ښکاره سره ویلای شو چې عیسویان
او امپریالستان د لبنان په ګټو کې سره شریک دي او ځکه د یو او بل ملا تړ سره
کوي، په ۱۹۵۸ کال کې عیسویانو د مصر سره سخته دښمني کوله، په ۱۹۷۵ کال کې یې
د فلسطین د مقاومت نهضت دسترګو سخت اغزی و، له ۱۹۷۸ څخه تر ۱۹۷۹
پورې یې بیا فلسطینیان او سوریه خپل سخت دښمنان وګڼل ...

په لبنان کې تر اوسه پورې وسله والې نښتې پای ته نه دي رسیدلې، خو سره
له دې ددغو نښتو څخه نتیجې څرګندې بریښي: لومړی دا چې د لبنان ارتجاعي ډلو
خپل ناوړه او شوم مقصدونه ترسره نه کړل، یعنې هرڅومره چې د لبنان ښي اړخ
عیسوي مرتجعینو په فلسطینیانو باندې د امپریالستي او طبقاتي ګټو د ساتلو په
خاطر ډیر زیات فشار او زور راوړي، خو په همغه اندازه فلسطینیان د دغو
مرتجعینو په مقابل کې په بې ساري زړورتوب د دغو توطیې د لبنان د وطنپالو
قوتونو په مرسته شنډوي، پوره جوته ده چې اوس په زیاته اندازه د فلسطین
د خپلواکۍ غوښتونکي نهضت دفاع په نړیواله سویه د مترقي قوتونو له خوا شوي
ده، همدا سبب دی چې د امریکا او مصر د خبرو اترو په ترڅ کې د اسرائیلو او
مصر د سولې د پلان ستر خنډ فلسطینیان ګڼل کیږي.

ښکاره ده چې د امپریالستي هیوادو د دغه شان پالیسي په نتیجه کې د لبنان
زیات شمیر خلک قرباني شول او تر اوسه پورې لا ددوی د شومو هیلو د سرته رسیدو
د پاره دا حالت دوام لري. د ښي اړخ فلانژیستان عملاً په دې بریالي شول چې
د لبنان ولس په دوو بیلو د ښي ډلو باندې ووېشي او د دغو ډلو منځ ته راتلل ددې
سبب شول چې د لبنان حکومت د دغه هیواد په خاوره باندې سم کنترول له لاسه
ورکړي او تر اوسه لا دا مساله بې حله پاتې ده.

د لبنان په سویل کې حالات دا څرګندوي چې امپریالستان او ددوی انډیوال
صیهونستان لبنان خاوره د زیاتې کشالې او تشدد لوری ته بوزي د لبنان په سویل کې
حالات هغه وخت خراب شول چې د ۱۹۷۸ کال په مارچ کې اسرائیلي اشغالګرو د
یوې سترې حملې او یرغل په ترڅ کې دغه سیمه د لیتواني دریاب ترغاړو (د لوردها ر

په ګډون لبنان د یوې ورې ساحلي برخې څخه پرته) پورې ونیوله، د لبنان له سویلي کرښو څخه د اسرائیلو د عسکرو وتل بیا هم په دغه معنی کې د لبنان د حکومت د کنټرول مفهوم نه لري، ځکه چې د اسرائیلو د اشغالګرو پوځونو په ځای په سویلي لبنان کې دغه تشدد او یرغل دنده دښي اړخ مسیحیانو لښکرو ته ور په برخه شوه چې ددې ځای کنټرول په لاس کې واري، په حقیقت کې د سویل خاورې یوازې تش په نوم مسیحیانو ته پرېښودل شوه او واک او اختیار بیا هم ددوی په سیاسي چلن سره د اسرائیلو په لاس کې دی، په بله ژبه د مسیحیانو پوځ د اسرائیلو د ګوډاګي په حیث وظیفه په غاړه لري. دروان کال په اپریل کې د اسرائیلو ګوډاګي حداد نومي مسیحي مرتجع په سویلي لبنان کې «د خپلواک لبنان دولت» په نوم د خپل کنټرول لاندې سیمه اعلان کړه.

د لبنان د کارګري ګوند مرکزي کمېټې سیاسي بیورو په اعلامیه کې وویل چې د حداد ګوډاګي لښکر د لبنان په سویل کې د اسرائیلو له خوا تجهیز شوې او د اسرائیلو د نفوذ او کنټرول له پاره په دغه سیمه واک ته رسېدلي دي، اعلامیه زیاتوي چې د سویلي لبنان ناوړه حالت په ښکاره ډول د اسرائیلو او مصر د ځانګړو موافقو نتیجه ده چې امریکا د متحدو ایالاتو د پالیسۍ له مخې د عربو خلکو په ضد تر سره شوې.

څه وخت چې په سویلي لبنان کې د خپلواک دولت په نوم اعلان وشو، نو محمد متي د لبنان د ښي اړخ مشرانو د لبنان د حاکمیت او تمامیت د قانون په ضد په عمومي ډول فعالیتونو لاس پورې کړ او په مقابل کې اسرائیلو د سویل لبنان عیسوي ګوډاګیانو ته د وسلاو مهماتو په لېږلو کې زیاتوالی راوست، د دغه راز د اسرائیلو واکمنو مقاماتو د لبنان سویل ته خپل مشاورین او ځانګړې کوماندو ډلې ولېږلې.

په همدې حال کې اسرائیلو اشغالګرو قواوو د لبنان په سویل کې د فلسطین کډوالو په ضد په پولسي ډولونو نظامي عملیاتو لاس پورې کړ چې د دغو عملیاتو په ترڅ کې زیات شمېر ملکي او بې ګناه کسان ووژل شول، په دې ډول سره اسرائیل غواړي چې په لبنان کې د پر له پسې وېرې اچونې له مخې خپلو هدفونو ته ځان ورسوي. د دغو هدفونو په اړه کې ددوی یو هدف دا دی چې د فلسطینیانو سرکوبت

کمزوري کړي او بیا دوی دومره کمزوري کړي چې د یوه لوی دولت د جوړېدو توان یې کمزوری شي. د اسرائیلو بل هدف دا دی چې فلسطینیان او عرب په خپلو منځو کې سره په دښمنۍ اخته کړي، دا په دې مفهوم چې اسرائیل غواړي په لبنان کې د فلسطینیانو د ټکولو له پاره د لبنان په ولس باندې سخته تنګسیه راولي چې په نتیجه کې هغوی د فلسطینیانو له موجودیت سره بدبین شي او په دې ډول سره دوی په خپلو منځو کې په دښمنۍ سره اخته کړي، د اسرائیلو مقامات داهیله لري چې په لبنان باندې د فشار راوړلو مخې د هغه حکومت مشران دې ته مجبور کړي چې د تل ابیب سره د مصر په شان د سولې پوخانګړی تړون لاس لیک کړي.

په سویلي لبنان کې د اسرائیلو له خوا د وسله والې لښکرې ورله پسې تهدیدونه او په دغه سیمه کې د تجزیه غوښتونکو تشویق د دې سبب ګرځېدلی چې په دې ډول اعمالو باندې د نړۍ او عربو کینه او خپګان نور هم زیات شي. د ملګرو ملتو د عمومي منشي په راپورونو او د امنیت شورا د ۱۹۷۹ کال په پرېکړو کې په څرګنده توګه د سویلي لبنان د حوادثو مسوولیت د اسرائیلو او د ښي اړخ د مسیحیانو په غاړه اچول شوی دی دغه شان د لبنان د عمومي کړکېچ عامل هم اسرائیل او ښي اړخ مسیحیان ګڼل کېږي.

کله چې سادات تش په نوم د «سولې ابتکار» (د ۱۹۷۷ کال په نوامبر کې د هغه سفر اورشلیم ته او د اسرائیلي مقاماتو سره د هغه ځانګړې لیدنې کتنې) پیل کړ، اسرائیلو بیا هم د ښي اړخ مسیحیان د هغو خپلواکي غوښتونکو قوتونو په ضد متشکل کړل کوم چې د امپریالیزم د ژغ (جغ) منلو سره مخالف دي، امپریالستانو په دغه وخت کې تر ټولو زیات د سوریې په ضد فشارونه واچول دا ځکه چې سوریه د امپریالستانو د پلانونو په مقابل کې ضد ګڼل شوې وه. د ۱۹۷۸ کال په فبروري کې د ښي اړخ مسیحیانو د درې ګوندو ډلو جبهې د اسرائیلو د اشغالګرو قوتونو په مرسته سره په لبنان کې د سوریې د سولې د ساتنې د پوځونو په خلاف نوې جګړې او ټکرونه پیل کړل. په دغه وخت کې د ښي اړخ مسیحیانو په دې پلمه چې د سوریې

عسکر دي له لبنان څخه واپستل شي ، نو بيا به پر له پسې توګه د هغو په ضد په وسله والو پرمختللو لاس پورې کړی و ، د دغه کال په اوږدو کې تر اکتوبر پورې يعني (هغه وخت چې د عربو د هېوادو بهرنيو چارو وزيرانو د لبنان د بيت الدين په سيمه کې په لبنان د عربو د سولې د ساتنې د پوځ د سرمشتو د برابر ولو له پاره زمينه وکړه) د ښي اړخ د مسيحيانو اړيدونه په هماغه فشار او شدت سره پر مخ لاړل ...

د پورتنۍ څېړنې څخه دا څرګندېږي چې د لبنان شخړې او کشالې چې د ښي اړخ د مسيحيانو له خوا د اسرائيلو او امريکايانو په سرسته تنظيم شوې ، منځ ته راغلې دي او همدا سر تجهيز دي چې د اسرائيلو او مصر تر څنګه په عربي هېوادو کې د امپرياليزم د ګټو ساتندوی او د هغو په هر وخت کې لاس په نامه ګوډاګيان دي .



عبدالکریم محب

# په افغانستان کې داستعمار داوږدو

## کلونو عملیاتو ته یوه کتنه

کله چې دانګریزانو لوی استعماري پوځ دافغانانو او انګریزانو په لومړي
جنګ کې له منځه یوړل شو او افغانانو د هیواد له خاورې او خپلواکۍ څخه
په بې ساري شهامت دفاع وکړه . انګریزي استعمار ته لویه اندېښنه پیدا شوه
او دهند دنیمې قارې د مستعمراتو ساتل له یوې خوا له او دافغانانو ملي سیاست
او دافغاني خاورې د تمامیت له پاره دافغانانو هلو ځلو انګریزان د نوو استعماري
پلانونو طرحې ته مجبور کړل . همه جنګ انګریزانو ته وښود چې ددې خاورې
لورې ته د پرمختګ او د استعماري تسلط له پاره اوږده پلانونه طرح او عملي
کړي . له همدې کبله د تدریجي پرمختګ یعنې په تدریجي ډول سره دافغانستان
دسیمو د نیولو پلان طرح شو ، نو کله چې دافغان او انګلیس د لومړي جنګ متصدي
دهند دهماغه وخت ګورنر جنرال اکلنډ په افغانستان کې دلوی انګریزي پوځ
له محوه کېدلو څخه وروسته په ناکامېدو له هند څخه لندن ته لاړ داستعماري
پلانونو د پرمخ بیولو چارې دنوي ګورنر جنرال (ایلنبورا) دنده شوه په دې
وخت کې لا هم دوه استعماري پوځونه یو دجنرال ناټ تر قوماندانۍ لاندې په
کندهار کې او بل دمېجر (رابرټ سېل) په قوماندانۍ په اوسنی (ترون ښار) کې

پرانه وو او هره ورځ د دغو افغاني ځوانانو سره په جګړو بوخت وو چې له هيواد څخه د دفاع په مقصد يې خپلې سينې د پرغلګرو تورو توپکو او توپو ته سپر کړې وې.

(اوټرام او) جنرال (ناټ) ته چې له يو لوی پوځ سره په کندهار کې په جګړو بوخت وو لارښوونه وکړه چې په غزني او کابل باندې د پرغل په نيت وخوځيږي او همدارنګه جنرال پالک يې له هند څخه له يو د پرلوی پوځ سره د پېښور او خيبر له لارې په افغانستان باندې د پرغل له پاره واستاوه چې د سيل د پوځ په ملګرتيا په کابل باندې له ختيځ لورې بريد وکړي. (۱) د دغو پوځي عملياتو پلان داسې طرح شوی و چې د جنرال ناټ او پالک پوځونه يو وخت په کابل ته ورسيږي او هلته هم د نورو ښارونو د تخريب غوندې د ښار په لوی تخريب او تاراک پيل وکړي. له همدې کبله دا بريد د غلط انتقام له احساساتو سره په ډېره بې رحمۍ وشو. د پالک او سيل پوځ له ختيځې خوا نه او د ناټ لښکر له لوېديځې خوا نه د کابل خوا ته وخوځېدل. د دغو سوقياتو په وخت کې چې د انګريزي پوځ له ماتې نه وروسته انتقامي عمل و افغاني جنګيالي د محکومۍ بري له احساساتو سره خواره شوي وو او خپلو سيمو او سيمو ته تللي وو او د جنګي ستراتيژۍ له مخې دا وخت استعماري پرغل ته يو ښه فرصت و او په داسې حال کې چې ناټ د غزني د ښار په رنګولو او سوزولو بوخت و د پالک او سيل لښکر له لوړ انتقامي احساساتو سره وروسته له يو زيات شمېر جنګونو څخه چې ډېره سخته مقابله د انګريزي مورخينو له خوا په دويم ځل هم د (خورد کابل) جګړه ګڼل شوې، کابل ته ورسېد او د کابل د ښکلو برخو په نړولو يې پيل وکړ او ښکلې بازارونه يې لوټ او ويجاړ کړل (۲) څرنګه چې د کابل د ښار زياتو خلکو له انګريزي ناتار څخه استالف ته پناه وړې وه نو د پالک لښکر د استالف ښار ته هم مخ په وړاندې لاړ او هلته يې په زرګونو بې ګناه خلک ووژل او ښار ته يې اور ونه ورته کړل او مدافعو افغانانو ته يې يو ځل بيا تېرې خونړۍ کيسې وريادې کړې.

---

(۱) جارج اروس له کابل نه ماتې ۳۰۲ مخ، د هند د تاريخ يوه لنډه سروې ۲۷۸ مخ

(۲) له کابل نه ماتې ۲۰۵ مخ.

د پالکې او ناپې پوځونه د دغو تخریبي عملیاتو له پښوړولو له وروسته بې له هر ډول ځنډ څخه مخکې له دې نه چې افغانان د جنګ میدان ته د دانګلو په مقصد منظم شي په ډېره بېړه بېرته د هندوستان لوري ته وخوځېدل.

د انګرېزي پوځ دا یرغل په حقیقت کې د پوې داړې او ناڅاپي برید په بڼه درلوده او د انګرېزانو خپلو مورخینو او سیاستمدارانو هم اعتراف کړی چې دا رنګه ناڅاپي یرغل هڅکله د دغه بې ساري پوځ چې دالمس د پوځ په نامه یادېده هیچ نه شي کولای (۱) لو ایلنبورا او وروسته هارډېنګ او نور ګورنر جنرالان د افغاني سیمو د اساسي پلانونو د تطبیق د لارو چارو په هکله کې فول د دوی تصمیم دا و چې افغانستان ته د پل لښکر له لېږلو او د دغه هیواد د مرکز له نیولو څخه مخکې باید هغه ټولې سیمې ونیسي چې د برتانوي هند او د افغانستان د سرحداتو ترمنځ پرتې وي او همدا رنګه دوی تصمیم نیولی و چې اکثرې افغاني سیمې دې باید له منظم برید څخه مخکې ونیول شي.

د هند د ګورنر جنرال په حیث د ایلنبورا د مقررېدلو په وخت کې د افغانستان او برتانوي هند سیمو ترمنځ د پنجاب او سند سیمې پرتې وې چې د پنجاب سیمه د رنجیت تر واکمنۍ او د سند سیمې د جلاجلا امیرانو په لاس کې وې. د دغو سیمو نیول او مستقیم تسلط پرې ټینګول د افغانستان د نیولو له پاره او د افغاني سرحدي سیمو د ولکې کولو له پاره لومړنی شرط ګڼل شوی و او لومړنیو پلانونو کې د همدغو سیمو نیول شامل وو. د دې عملیاتو له پاره داسې یو جنرال ته ضرورت و چې هم د میداني جنګ د لارښوونې پښوړ مهارت ولري او هم د مکر، دسیسو او توطیو استعمالولو او یو د بل په مقابل کې د جنګولو په فن پوه وي

نو دې پلان د کامیابۍ له پاره چارلس ناپیر چې د زیاتو استعماري جګړو یو زوړ او سما هرو قوماندانو و وټاکل شو (۲) دغه د لوړو جنګي تجربو افسر شپېته کلن و، خو زړه یې لا هم له وژنو او یرغلونو څخه نه و توړ شوی. ده پخوا هم د خپل جنګي

---

(۱) دا پوره د توري قضاوت.

(۲) ارترسوین سن شمال لوید بز سرحد ۹۹ مخ.

ما موریت د بیا پیل او په وژلو باندې دوبار لوېد باب په ۱۸۳۱ کال کې چې
هغه وخت کې دانګلستان په شمال کې ماموریت درلود لیکلي وچې: (( زما
او ستې مهمه دنده او زما هوداد ته د تهدید او ستي حالت زما د تېرو ددلو غونډې
چې له ما جرګالو او مهمو پېښو څخه دکې وي له ما څخه غوښتنه اړې چې د خپل
عمر لنډه موده چې پاتې ده بایدداسې لوبو عملیاتو او ماجراګالو ښکاره نه وي
وکړ ځوم چې له ټولو پخوانو خاطراتو او پېښو څخه مهمې او خطرې وي .)) (۱)
دادناپیر یوه تشه لیکنه ده، هغه په عملي ډول وښوده او ثابته یې کړه چې داسیا
دغې برخې ته دبشري مواظبو څخه سېرا د یو استعماري جنایت کار په ډول راغلی و.

چارلس ناپیر ته د ۱۸۴۲ کال دسپتمبر دمیاشتې په دریمه نېټه امر شو چې
له ټولو نې څخه رخوخیرې او په سند کې دجنګې عملیاتو او اداري او سیاسي چارو واګې
پخپل لاس کې ونیسي. دسند نیول او له هغه ځایه څخه د بلو څوا فغاني سیمو ته
ننوتل د کول دانګریزانو استعماري پلانونو کې ډېر لوی اهمیت درلود. د هغه
داستعماري تاکتیکونو ماهر ټوماندان همدغسې ورځو او همدارنګه غېر ته سترګې په لاره
څور کولای شي چې دژوند په وروستیو ورځو کې هم خپل هوس د بې ګناه هو خلکو
یعنې د هغو خلکو چې پخپل هیواد کې یې دخپل هیواد له خاورې څخه د فاع
کوله په سرو وینو خړوب کړي او داسیا زړه دغه د زمرو تالوبې ته دسند او پنجاب
په نیولو په تدریجي ډول مخ تګ د توري په زور لاره وکړي.

سند د ناپیر درسیدلو په وخت کې په درېو خپلواکو سیمو یعنې خیرپور (بر سند)،
حیدرا باد (کوز سند) او میرپور ویشل شوي واو ددغو درې واړو برخو هره یوه خپل
جلا سیاسي او اداري تشکیلات درلودل چې دا ډول تجزیې او تشتت ددې سیمو نیول
انګریزانو ته ډېر اسان کړي و. کله چې ناپیر کراچۍ ته ورسید، دهند بر تانوي
ګورنر جنرال ایلنبور او یو لیکل ده ده له رسیدلو څخه مخ کې دده په نامه رسیدلی و
او ورته د کار په میزې اېښودل شوی و. په دغه لیک کې ګورنر جنرال ورته
بر سېره پر پخوانۍ لارښودونو امر کړی وچې هر یوا میرته چې لاسلکې یې له بر-

(۱) شمال لویدیز سرحد ۱۰۰ مخ.

تالې سره مخالفت ښودلې و ډېره سخته جزا ورکړې . ناپېر چې یو پوځ استعماري
تېرایستونکی وې په چلا ره څوره کړه شو چې و کولای شي خپل پلانونه د سیمې د
امیرانو د منسجمې دفاع څخه پر ته ترسره کړي او همدا رنګه په دې بریالی
شي چې له خپلو سختو بریدونو څخه مخکې د خلکو او د هغو سیمو د سیاسي او اداري
ارګانونو ترمنځ یو داسې اختلاف پیدا کړي چې د استعماري پلانونو د کامیابي په
ګټه وي نو یوه اعلامیه یې په دې عبارا تو خپره کړه : «زما هدف دا دی چې د دې
سیمې مظلومو خلکو ته له ظلم څخه نجات ورکړم نو ځکه امکان لري چې امیران
زما د دې عمل په خلاف ټینګار او مقاومت وښيي، که دوی په رښتیا مخالفت وښود
او دا به د دوی خپل تقصیر وي . د دې زغم هیڅوک نه شي کولای چې یو څو تنه
دې په ټوله سیمه باندې واکمني وکړي .» (۱) دا اعلامیه چې د عامو خلکو د
تېرایستلو له پاره خپره شوې وه په حقیقت کې د ناپېر او انګرېزي حکومت هدف
په څرګند ډول ښودو ځکه د انګرېزي پوځ له راتللو سره د خلکو او حکومت مخالفت
یو څرګند حقیقت و او په مقابل کې یې د انګرېزي پوځ ناتار ته هم استعماري
استدلال وړاندې شوی و . سندي امیران چې د برتانوي استعمار په مقاصدو پوه
وو په پوره اضطراب کې ښکیل شول او کله چې ناپېر دا ابلاغ کړ چې د سند
په باب یې یوه معاهده برابره کړې ده چې باید د ده او د امیرانو ترمنځ لاسلیك
شي او د دې ابلاغیې سره یې سم د معاهدې تند او شدید مطالب هم څرګند کړل
امیران وار خطا شول او خپل بلوڅي لښکر یې احضار کړ چې د ناپېر دا ابلاغیې
په ضد د لارو چارو د لټولو په وخت کې چمتو اوسي، خو ناپېر د دوی د دې اقدام
په مقصد پوه شو او د امیرانو له دفاعي اقداماتو څخه مخکې یې یوه بله ابلاغیه په
دې ډول خپره کړه : «ما له مخکې څخه تصمیم نیولی چې که د سند امیران یوه ټوټه
ځمکه په لوري وکړي موږ به د سند خاوره د برتانیې د هندي مستعمرو یوه برخه و
ګرځوو .» (۲) د ناپېر له خوا د چمتو شوې شدیدې معاهدې مسودې د سند امیرانو

(۱) شمال لویدیز سرحد ۱۰۲ مخ .

(۲) شمال لویدیز سرحد ۱۰۳ مخ .

ته د نو مبر د میاشتې په پای کې ورسیدې، خو دوی پوهېدې چې انګریزي جنرال
ته مثبت یا منفي ځواب ورکړي خپلو خبرو اترو او کنفرانسونو ته دوام ورکاوه
او غوښتل یې چې هر راز تصادم او یا توافق د اوړي تو دوخې ته وځنډوي او یې ځکه
د سند په سختو او سړو پېټ یاو او اوریځو سیمو کې بیا انګریزي پوځ بری نه
شو ای کولی (۱) مګر نا پېر په دې حقیقت پوه و نو د دسمبر د میاشتې په اتمه نېټه یې
یوه اعلامیه صادره کړه او په هغه کې یې څرګنده کړچې د ده د معاهدې د مطالبو
له مخې له (سېزل ګوټ) څخه تر (روهړي) پورې سیمه په بریتانیې پورې اړه لري
د نورو یا تې مطالبو په باب مذاکرې لا هم جریان درلوده امیرانو ووېل بیا د پوځ
په احضارا تو پیل وکړ، انګریزي جنرال د دې حالت په هکله لو یې له هر دول څخه اعلام
وکړچې امیران مکلف دي چې د ده د مسودې د منلو یا نه منلو په باب خپلې نظر یې سم له لاسه
یې له ډیل اوځنډ پرته څرګندې کړي. هغوی د دسمبر د میاشتې په پنځلسمه نېټه هغه مسوده
رده کړه او د هغوی له تر دید سره سم نا پېر د انډس د سیند په بله غاړه کې په پسو قوات
تو پیل وکړ چې سېزل کوټ او (بګګه یرا) ونیسي. سره د دې هم امیرانو سخت عکس
العمل ونه ښود او د هغوی او بر تا نوي استازو تر منځ د روغې جوړې خبرې تر هغه
وخته پورې روانې وې چې د دوی فصل نږدې شو خو د وی له رسېد او څخه
مخکې نا پېر د وسخت برید په تکل کې شو به هغه ډه ترخ کې یوه بله تصادفي
پېښه هم د نا پېر په ګټه وشوه پېښه داسې وه چې عسکرو یې په تصادفي ډول د فبروري
د میاشتې په دولسمه نېټه عسکرا ندا په سیمه کې د ده د خپل کمپ ته نژدې یوه ډله
و نیوله چې په اسونو سواره وو کله چې د هغوی په اټولو پیل وشو د ډلې له مشر
سره یې یو لیك پیدا شو چې د مطلب له مخې د حیدراباد امیر هغه ته امر کړی و چې
د سیمې هغه ټول خلك چې توره په لاس کې ورلی او وهلی شي د فبروري په نهمه
نېټه د میانۍ په سیمه کې راټول کړي. دا لیك ور ته په داسې یو وخت کې لاس
ته ورغی چې د ده ته هم د امیرانو له خوا یو لیك رسیدلی و او په هغه کې تري غوښتنه
شوې وه چې خپل برید دې تر نهمې نېټې پورې وځنډوي. انګریزي جنرال ته د

---

(۱) شمال لویدیز سرحد (۱۰۲) مخ

سندي وطن پالونکو د دغه مهم دفاعي پلان افشا کېدل په سند باندې د هغو پرغا-
لګرو د بري بوښه عامل وګرځېد . دې اېك تالپور ته د سندي امیرانو د ګلك د فاعي
تصمیم راز څرګند کړ او هغه ته د پرغل او له هغې تا ګلي مو دې څخه دو ځتي
بريد او کامیابي اسباب برابر کړ ، او تالپور ګروال او ترام ته چې په سند کې د
هند د برتانوي ګورنر جنرال سیاسي نماینده و او د تالپور بريد اې د سیاسي تحلیل له
وخت څخه لیرې څخه ځکې ګانه د دیر غرور سره ولیکل (زه باید سبا ته بريد وکړم
او هر بووسله وال فرد چې ورسره مخامخ کیږم له منځه یوسم . . . زما پوځ دلاردا-
پلېو واوله خوا هم د ږنګه امر او هدایت دی او ما بو ولس له پلکې دولسماعته د پرغل امر
تاخیر کړی دی . زموږ افراد زما د حکم په نتیجه کې وژل کیږي دوژل کیدلو مسول یې
زه یم . . . زه د بري د ګټلو په باب هماغسې داډلرم لکه چې بوتن له بري څخه
وروسته یاد ترلاسه کوي . )

دده دغه لیك په شپږو کې دده د مځکې جنګې تصمیم له کبله په حیدرآباد
کې جنګ پیل شو او د اتوزرو تنو پولشکر د سندي امیرانو په مشرۍ په
حیدرآباد کې د انګریزانو د سیاسي استازي په اداره او استوګنځي پوه سخته حمله
وکړه او برتانوي سیاسي استازي اوټ رام وروسته له اوږده مقاومت څخه په
دې بریالی شو چې د دز بوځي وسله والو بېړیو په واسطه وتښتي . له دغې پېښې
څخه وروسته د فبروري د میاشتې په اوولسمه نېټه برتانوي پوځ د حیدرآباد د نیولو
په نیت وخوځېد او د امیرانو او د تالپور د پوځونو ترمنځ سختې جګړې ونښتې چې
په نتیجه کې سندي امیران د میانې په برخه کې مغلوب شول او وروسته بیا په بله
جګړه کې هم چې په حیدرآباد کې وشوه د مارچ په څلورویشتمه نېټه ماتې
وخوړه او جګړې پای ته ورسیدې او سند په مستقیم ډول د برتانیې د هندې مستعمرې یوه
برخه شوه او د بمبۍ د ریاست پورې مربوط شو او تالپور یې د ګورنر په ډول مقرر شو(۱)
د انګریزانو په واسطه د سند نیول کیدل د افغانستان په تاریخ کې یوه مهمه
پېښه ګڼل کیږي ځکه په سند کې د استعماري تسلط له ټینګیدلو سره د برتانیې

---

(۱) د هند د تاریخ یوه لنډه سروې ۲۷۹ مخ .

پولې د لومړي ځل له پاره دافغانستان سرحداتو ته د بلوڅو دسيمې پولو ته ورسېدې او د افغاني سيمو دنيولو له پاره انګريزان د همدغې پېښې له ورسته پوره سل کاله په خونړيو جګړو بوخت پاتې شول چې ددوی او دافغاني سيمو دخلکو هره جګړه دجلا کتابونو ليکلو ته اړتيا لري او دهغو جګړو استعماري اغېزې لا هم دآسيا لهدې برخې څخه نه دي محوه شوي.

دسند له نيولو څخه لا ډېر وخت نه وو تېر شوی چې په سرحدي بلوڅو کې سخته ناارامي پيدا شوه او بګټي قبيلې دناپير په پوځونو باندې په بريدونو پيل وکړ جنرال ناپير د پرله پسې بريدونو له کبله ديو سخت يرغل په نيت له دوو زرو تنو پلي عسکرو او دوه زره تنو غير دايمي عسکرو او اتو توپونو او نورو سپکو اودرنو وسلو سره دهغې سيمې شمال لوري ته وخوځېد. هغه په دغو عملياتو کې خپل پوځ په دوو لښکرو وېشلو يو لښکر ته يې لارښوونه وشوه چې په مستقيم ډول دې په پلاچني لوسي سيمې باندې يرغل وکړي او بل دې دجنګيالو دمحاصرې په مقصد وخوځېد. خو مخکې لهدې چې ددوی پلان په عملي ډول ترسره شي. بګټي بلوڅان دانګرېزي جنرال په تصميم پوه شول اوله محاصرې څخه مخکې شا لوري ته لاړل. ورسته بيا ناپير ته اطلاع ورسيده چې بګټي جنګيالي له سختې غذايي تنګسې سره مخامخ دي نو هغه داستعماري تاکتيکونو سره سم لهوخت څخه ګټه واخيسته او هغوی ته يې داخطار په ډول يوخبر واستاوه چې په هغه کې يې ويلي وو «د بګټي مشر دې بايد ژر ترژره وسلې کښېږدي اوله خپله پېروانو سره چمتو واوسي چې دانډس له سيند نه پورې غاړې ته کوم ځای چې زه ددوی داستوګنې له پاره ټاکم ولاړ شي او هلته واوسېږي ..... که چېرې د وی د دغه امر له منلو څخه سرو غړوي دهغه تعقيب به ترهغه وخته پورې وشي چې وانيول شي او ووژل شي» (۱) بګټي مشر ددې ليك په ځواب کې وليکل چې دی چمتو دی چې انګرېزي مقاماتو ته ځان وسپاري، خو بيا هم ددغه رنګه پيغام سره سره دځان دتسليمولو هيڅ ډول اقدام ونه کړ اوحتی داچې په انګرېزي پوځ باندې يې ډېر سخت بريد وکړ چې ددغه

---

(۱) شمال لويديز سرحد ۱۰۶ مخ.

بريد له کبله دانګريزي پوځ او بګټي جنګيالو ترمنځ بيا هم سخته جګړه ونښته
ناپير له خپل لښکر سره د غرونو ترمنځ د سرو را ننډي لاره او بګټي
مشر او ورسره نور جنګيالي يې په تراکي نومي ځای کې چې په طبيعي
ډول له ځلورو خواو څخه احاطه شوې برخه وه محاصره کړه خو هلته هغوی په
هغسې بدحالت کې هم دانګريزانو د شرايطو منلو ته حاضر نه شول او دوی په لوږ
توان ځانونه له محاصرې څخه وژغورل او بيا هم د دواړو خواو ترمنځ سخت جنګ
پيل شو په پای کې هغه جنګيالي مشر او پيروان يې دانګريزانو د يو ډېر لوی
پوځ سره د څلور پنځوس ورځو خونړيو جنګونو څخه وروسته ونيول شول خو بيا هم له
انګريزي برخالګرو سره د دوی د قبيلې جنګونه اوږدنښتي پای ته ونه رسېدې.

د بګټي قبيلې په مقابل کې دانګريزانو د غو برېدونو په موده کې انګريزي
استعمار د خپلې مستعمرې پراختيا دري سوه پنځوس ميله نوره هم زياته کړه.

د افغانستان سرحدونو ته د انګريزي استعمار د رسېدلو له پاره يوازې
د سند نيول کافي نه وو لکه څرنګه چې مخکې وڅېړل شول هم د دوی دوه کمنۍ
همال ختېزاورى ته د پنجاب واکمنۍ پر ته وه چې ځينې افغانی سيمې هم پکې
د ځينو خاينو سردارانو په خاص ډول د سلطان محمد چې وروسته بيا زوات يې هم د
همدغه استعمار چارګړان پاتې شول د ملي خيانت له مخې شاملې وې. انګريز حکومت
داسې ګڼلې وچې د رنجيت له مرګ نه سم له لاسه وروسته د پنجاب واکمنۍ ولېسي. خو سره
د دې هم هغوی د رنجيت له مړينې څخه سم له لاسه وروسته د تاج او تخت د نيولو له پاره
يې بېړه ونه کړه. رنجيت سنګ چې مړ شو مشر زوی يې کړک سنګ د پنجاب واکمن شو
او کړک سنګ، راجا ديان سنګ د خپل لومړي وزير په توګه وټاکه خو کړک
سنګ په ۱۸۴۰ کال کې مسموم شو او د هغه په ځای شېرسنګ د (خالصه) پوځ له خوا
چې د سکانو مذهبي پوځ و د واکمن په ډول و درول شو. شېرسنګ تر ۱۸۴۳ کاله
پورې د پنجاب واکمن وخو هغه چې په نوموړي کال ووژل شو د رنجيت کشر زوی
دليپ سنګ واکمن شو خو د هېواد د چارو واګې د دليپ سنګ د مور او د هغې د مين

په لاس کې وه چې لال سنګه نومېده. دا د همدغه کمکي دلیپ سنګه د پاچاهۍ په وخت کې وه چې انګریزانو د خپلو طرح شوو استعماري پلانو سره سم د برتانوي او سکانو د پخوانیو معاهدو په خلاف پریکړه وکړه چې پنجاب هم پخپلو استعماري سیمو کې زیات کړي. په دغه وخت کې د هند د ګورنر جنرال په ډول د ایلنبورا و ماموریت پای ته رسیدلی و او هارډینګ د نوي ګورنر جنرال په ډول د چارو واګې په لاس کې نیولې وې. هارډینګ ته د پنجاب د نیولو کار سپارل شوی و او د هغه سره سم د سکانو او برتانوي استعمار ترمنځ د ۱۸۴۵ کال د نومبر د میاشتې په اوو لسمه نیټه کله چې د سکانو پوځ د ستلج له سیند څخه پورې وتل جګړه ونښته او دا د سکانو او برتانوي لومړی مستقیمه نښته ګڼل کیږي. د دې جګړې په ترڅ کې انګریزي پوځ د سکانو د واکمنۍ د مرکز په لور چې د لاهور ښار و مخ په وړاندې راغی او د لاهور ښار یې په پوځي قوت ونیو او غوښتل یې چې د دغه بري په نتیجه کې په پنجابي واکمنانو باندې خپل شرائط تحمیل کړي نو هارډینګ یو فرمان صادر کړ چې برتانوي پوځونه د سکانو د واکمنۍ په ټولو ښارونو کې چې پېښور هم پکې لکه څنګه چې مخکې وویل شو شامل و ځای په ځای شي. د دغه تصمیم له مخې هربرت اډوارډس د پېښور د چارو د پاره وټاکل شول خو لاهم د لاهور په ښار کې د سکانو دربار د رنجیت د اته کلن زوی د لیپ د مور جندن نومې میرمنې د تش په نامه واکمنۍ لاندې دوام درلود. (۱)

---

(۱) شمال لویدیز سرحد ۱۰۹ مخ.

م - ابراهیم عطائی

# د پېواړ حماسه

د افغان او انګلیس د دوهمې جګړې په دوران کې د یوې تاریخي پېښې څخه په اقتباس یوه نمایشنامه

(۳)

دریمه پرده

لومړۍ صحنه

**پرسوناژونه :**

جنرال رابرتس :

جنرال تهېلوال :

جنرال کاپ :

کرنیل ډرېو :

میجر پالمر :

حضرت شاه :

میرباز :

سپاهیان :

**دیکورشن :**

فضا تیاره ده هوا زې په یکه ډول مخونه معلومېږي .

په تیاره کې لاندې د یو کنډو خوله معلومېږي .

میکیاژ :

جنرالان او صاحب منصبان د منصبدارۍ په لباس کې چې کرهڅو له هم لري عسکر په عسکري لباس کې دي چې پر توپکانو یې او پر دېپرچې نصب کړې دي . چنته او توپکان پورې ځوړند دي .

* * *

لومړۍ صحنه :

(عسکر صف ولاړ دي . مخ ته یې منصبداران ولاړ دي او جنرال رابرتس د دوی مخ ته قدم وهي کله سر ځړوي او کله اسمان و ته وګوري ) :

**جنرال رابرتس :**

جنرال تهیلوال !

ایا ته پوره متیقن یې چې دښمن به غافل وي ؟

**جنرال تهیلوال :**

هو ! کاملا مطمئن یم . زما د پوستې ورو ستی راپور وایي چې هغوی د کامل استراحت په حال کې دی .

**جنرال رابرتس:**

کرنیل ډرنو !

سپاهیانوته دې د شب خون د برغل پوره هدایت ورکړی دی ؟

**کرنیل ډرنو :**

هو! کاملا تیار دي !

**جنرال رابرتس :**

میجر پالمر !

سپاهیانو ته ډوډۍ ور کول شوې ده ؟

میجر پالمر

هو ! نن مې وختې ډوډۍ ور کړې ده .

**جنرال رابرتس :**

(جنرال تهلیوال ته رانژدې کېږي او ورووړ ته وایي )

پښتنو سپاهیانو ته مو د بخښښ په باب هم اقدام وکړ .

جنرال تهلیوال :
(کرنیل دریو ته اشاره کوي او هغه هم دوی ته ورنژدې کیږي او بیا وابرتس ته وایې)

هو ! داکارکرنیل دریوکړی دی .

جنرال دابرتس
(اشاره کرنیل دریو ته)

ایا ته پوره مطمئن یې چې دغه خلك به صادقانه خدمت وکړي؟

کرنیل دریو
کاملا ! محترم جنراله په کلي توګه مطمئن یم حتی ضمانت یې کوم !

جنرال دابرتس
(له جنرال تهلوال او کرنیل دریو څخه را بېلیږي او د جنرال کاب مخ ته دریږي)

هرڅګه جنرال کاب !

دغه نظامي عملیات دې منظور دي؟

د کار نتیجې څخه څو فیصده مطمئن یې ؟

جنرال کاب
محترم جنراله !

زه دغه عملیات تر ډېره حده پورې قسمت کې چې د پښتنو سوابا نو سره اړه لري هیڅکله مطمئن کېدای نشم . لطفاً به ما په دغه قسمت کې معذور وګڼۍ چې ترڅو شپیږ میاشتې مې په سیمه کې نه دی اوسېدلی زه ته ده او عادت یې هم داسی چې دا قوم زه خورا ښه پېژنم زموږ او د دوی دوستي او پوه په اعتماد یو خوشې خیال دی !

جنرال دابرتس
په هر څه چې وي اوس خوپه دغه عملیات پیل کوو .

(وابرتس راځي او دعسکرو په مخ کې دریږي او په کښته تیټ اوازداسې وینا کوي)۔ بهادرانو سرباز انو !

ان شپه موږ د جهان واکمني خوځلي علیا حضرتي ملکې ته یو لوی امتحان ورکو زموږ دښمن په لاندې دره کې پروت دی او زموږ لاره یې بنده کړې ده .

موږ به پر هغو شب خون کوو هغوی موږ غافل کړي دي او تاسې به په ډېره بهادرۍ او مهارت پر هغوی حمله کوئ.

زما امر دادی چې نه یوازې به ددوی څخه یو هم ژوندی نه پرېږدې بلکې په یوه مارش به لاندې کلیو ته ځانونه رسوی او هلته به حتی یوه چرګه هم ژوندی نه پرېږدئ، کورونو ته به یې اور اچوی، حتی ددوی واړه او ښځې به هم کلاوو کې ایندې وي او کلاو ته به اور اچوئ، څو بیاچا ته داسې جرئت پیدا نشي چې دلویې برېتانیا په مخ کې خنډ شي.

زما او امر قوماندانانو تاسې ته رسولی دی او ما ته به هغه بهادر سپاهي ډېر ګران وي چې ډېر دښمنان ووژني او ډېر کورونه وسوځي.

ځئ اوس روان شئ! خو زما د قوماندې په ځواب کې تاسې اوس په دسته جمعي اواز د قبول ځواب مه راکوئ ځکه کېدای شي چې دښمن خبر شي.

ستاسې ډېره او به وظیفه داده چې په نظم او کامله خاموشۍ تر هدفه ځان ورسوئ.

(رابرتس امرور کوي) مخ په وړاندې خاموشه بانظمه مارش!!

(عسکر روانیږي او مخ په وړاندې ځي)

## دوهمه صحنه

(فضا تیاره ده خو خاموشه ليدونه کله کله د سپاهیانو سرونه ښکاره کوي.
د ډېر لیرې څخه کله کله د سپو د غپا اواز د باد په څپو کې را رسېږي.)

(جنرال تهیلوال، د جنرال رابرتس واسته اړخ ته او جنرال کاب د رابرتس چپه اړخ ته په عسکر پسې روان دي.)

(د برېتانیا بیرغ د لښکر په پای کې یو عسکر د جنرالانو په مخ کې وړي.)
خاموشي او چوپتیا ده. یوازې د سپاهیانو د پښو اواز هم ډېر کرار اورېدل کېږي.

**جنرال رابرتس:**
جنرال تهیلوال! (په ډېر کرار اواز)

که دغه مانع له مخې لیرې شي نو یقین دی چې بیا به تر هلی خیلو پورې زموږ مخ ته څوک تکیه نشي.

جنرال تهیلوال !
هو محترم جنرال !

کرنیل ډریو ډیر ښه ترتیبات نیولی دي .
(عسکر خاموشه روان دي -چوپه چو پیتا ده)
(کرنیل ډریو دوی ته راځي ور ته وایی :)

کرنیل ډریو :
دښمن کاملا غافل او داستراحت په حال کې دی !

جنرال رابرتس :
څومره فاصله به دد ښمن کمپ ته پا ته وي ؟

کرنیل ډریو :
دوه زره ګامه لیرې نه یو خوموږ مستقیم نه پرورځو او د تنګی دڅپې خواڅخه پرور کښته کیږو ښایی درنګ کړی له زموږ برچې د دښمن پر سینه ښخې شی .
(عسکر په خاموشی روان دي او دپښتنو عسکر په پنځم صف کې روان‌دي)

میر باز :
(دحضرت شاه اړخ ته‌روان دی ، وروبې په‌ځنګل وهی اوکرار ور ته وایی)

میر باز :
راورسیدو څه کوی ؟

حضرت‌شاه :
صبر وکړه اوس لاوختی‌دی .

میر باز :
ښه ته پوهیږې .

(عسکر روان دي او خامو شی ده )

( څود قیقې و ر و سته )

نا څا په د حضرت شاه توپک ډزه وکړه او په دې پسې د میر با ز د تو پک ډ زه شوه هر یې خوا ته شو ر جوړ شو لښکر په بې نظمی سره تیت شو .

جنرال رابرتس :
( په قهرا و غضب )

داڅه وشوه ! ؟

ولې ! ؟

کرنیل ډریو !

دا غدار څوک وه ؟

**جنرال تهیلوال :**
وراله شوه هلې زرشی لښکرته د جم قوماندهور کړی .

(هرې خواته زوږ او نارې پورته شوې )

**جنرال دابرتس :**
پردښمن یرغل وکړی ! ( په ډېر اوږ اواز)

(هرې خواته زوږ او نارې دزې پرله پسې ډې کېدې)

**جنرال کاب :**
میجر پالمر ! بیرغ پر مځکه پروت دی پورته کړه !

**میجر پالمر :**
افسوس ! داد پښتنو د پلټنې غداری ده ( بیرغ د مځکې پورته کوي)

**جنرال دابرتس :**
کرنیل ډریو !

غدار ونیسی چې ونه تښتي !

**جنرال کاب :**
د پښتنو پلټن ترنظارت لاندې ونیسی دا کار د پښتنو دی زړوا ره مې ولې دي چې پردغه قوم هیڅ اعتماد په کار نه دی .

(حضرت شاه ـ میرباز او پښتنې سپاهیان د نورو عسکرو له خوا ه د پرچو په شپول کې را ګېر شوه اود حضرت شاه او میرباز متې هې ورو تړ لې )

(هرې خواته زوږ او شورما شور جوړ دی)

**جنرال دابرتس :**
جنرال تهیلوال !

لښکر ته دد ښمن پر کمپ د چټک مارش قوماندهور کړه .

**جنرال تهیلوال :**
لښکر په غیر منظم ډول تیت شوی دی دادی قوماندهور کوم .

مخ د دښمن دکمپ پر خوا ما رش . بر چې برتو يک سېر ي کړ ی ؛ .

( هر ې خوا ته ز و ږ او نا رې څرې دي )

**کرنيل ډ ر يو :**

ددښمن لښکر خبر شو دا دی را او ر سېد ل .

**ميجر پا لمر :**

آن په تن جنګ پيل شو .

( هر ې خوا ته ز و ږ ، نا رې د برچو د لصا دم ږ غ )

لو ی غا لمغا ل

**څلو رمه پرده**

**پوسو ناژونه**

جنرال را برتس

جنرا ل تهملوا ل

جنرا ل کاب

کر نيل ډريو

ميجر پا لمر

حضرت شا ه

سور با ز

رضاشاه (هند و ستا نی ا فسر)

لونس کسه پښتا نه سوا ران

**ديکوريشن**

د عسکري قرار ګاه دتوما نداني څلور کونجه لويه خيمه ـ دخيمې دسرخوا ته پواوږد سېز پروت دي چې شا ته يې چوکۍ پر تې دي . د سېز شا ته برمنځنۍ بر خه جنرال را برتس نا ست دی چې راسته لا س ته يې جنرا ل تهملوا ل چپه لاس ته يې جنرال کاب نا ست دی د جنر ال تهملوا ل ارخ ته کر نيل ډريو او دجنرال کا ب ارخ ميجر پا لمر نا ست دی .

دسېز د پوسر په مقا بل کی په يوه پنجره کی حضرت شا ه ، او د سېز بل سر ته په پنجره کی سرباز ولا ړ دی .

نو نس کسه عسکر چې لاسونه یې تړلي دي په درو صفو کې په مخکنه ناست دي
د جنرال رابرټس د چوکۍ پر سر د خیمې په دیوال پورې د ملکې ویکتوریا چوکاټ
شوي عکس ځړېږي.

د جنرال رابرټس شاته یې باورولاړ دی او پر میز د رابرټس مخ ته یوه دوسیه
او کاغذونه پراته دي او د پرتانیا کوچنی بیرغ نصب دي.

د خیمې په دننه کې شاو خوا ته دولس کسه پرتانوي عسکرچې پرچپې یې پر
ټوپکانو سوري کړي دي د تیارسي په حال کې ولاړ دي.

## میکیاژ

جنرال رابرټس. جنرال تهیلوال. جنرال کاب د جنرالي لباس اغوستي کرنیل
د ریو او میجر پالمر د صاحب منصبي کالي اغوستي دي حضرت شاه د عسکري کالي
اغوستي دي خو ګریوان یې څیري او لاسونه یې تړلي دي. نور باز هم عسکري
کالي اغوستي او لاسونه یې تړلي دي.

رضا شاه هندي افسر د صاحب منصبي لباس اري او عسکر وهم عسکري لباس
اغوستي دي.

## لومړۍ صحنه

### عمومي وضع

د محاکمې جریان جاري دي

### جنرال رابرټس

(په غضب او ډیر قهر)

اي بد بخته غداره! (اشاره حضرت شاه ته)

دادې څه وکړه؟ ولې دغه وکړه!؟

### حضرت شاه

ما په اراده دغه نه ده کړي!

### جنرال رابرټس

نو څرنګه ټوپک ټک وکړ؟

### حضرت شاه

زه متوجه نه وم ټوپک مې ډک واو په ناڅاپي ډول مې ګوته پرما شه برابره شوه

**کرنیل دریو**

غداره! تر کومه وخته چې توپک کولنګ پورته نشي ساهه نه وهل کېږي کولنګ دي هر کنده پورته کړه ؟

**حضرت شاه :**

زه غدار نه یم ما ته دغدار خطاب مه کوي !

ماد توپک کولنګ ددې له پاره پورته کړی وه چې دېر ژر په وخت کې مې توپک ډزې ته تیار وي .

**کرنیل دریو :**

( اشاره میر باز ته )

میر بازه ! پرلاري چې ته حضرت شاه ته ور نژدې شوي څه خبرې دې ورسره کولې ؟

**میر باز**

زه په ټوله لارکې دحضرت شاه اړخ ته تلم او خبرې مې ځکه کرار ورسره کولې چې دخاموشي امر صادر شوي و . ما معمولي خبري له ده سره کولې .

**کرنیل دریو:**

میر بازه ! کله چې حضرت شاه ډزه وکړه تاولې په هغه پسې پوست ډزه وکړه

**میر باز :**

په دغه وخت کې زه دحضرت شاه څخه لیري وم او کله چې مې ډزه واورېده خیال مې وکړ چې ددښمن له خوا ډزه وسوه نو جوابي ډزه مې وکړه .

**میجر پالمر :**

تر حرکت دمخه چې تاسې پوویشت کسه (اشاره عسکرو او میر باز او حضرت شاه ته ) په خیمه کې پوځای واست مقاسي ځینې خبري دګزمي عسکرو اورېدلي دي وو- ایاست تاسې هلته څه مصلحت کاوه ؟

**سپایان :**

موږ ټولو دملکې دسلامتۍ ترانه ویله .

**جنرال کاب :**

(دجنرال رابرتس خواته مخ ور اړوي او په نسبتاً ارامه لهجه وايي وګوره

! دومره چالاکه دی . ما پخوا ویلی ووچی پر دغو خلکو هیڅ اعتماد په کار نه دی

دا ټوله غداران دی .)

**حضرت شاه :**

موږ غداران نه یو . موږ وطنپرستان یو ، دا دی چی زه مو خوښ شی نو اعتراف

به درته وکړم چی زه یو پښتون سړیا زیم ، ماستاسی په اردوکی په صداقت خدمت

نه دی کړی او تاسی هیڅکله دافکر مه کوی چی یو پښتون به تاسی ته صادق شی

پښتون خپل وطن ته صادق دی .

زه باید ووایم چی ما په کامل وقوف اوخبر تیا هزی و کړی چی په لاندی درو

کی خپل پښتانه ورونه بیدار کړم .

**کرنیل پرېو**

(په آهر دحضرت شاه له خولی خبره اخلی او وایی)

چوپ شه احمقه خولی دی بنده کړه !

**جنرال کاب**

(اشاره کرنیل پرېو ته)

کرنیل پرېو ! مجرم ته اجازه ورکړه چی خپل اعتراف په مکمل ډول و کړی .

**حضرت شاه:**

ای احمقانو !

ما اوریدلی وه چی انگریز هوښیار دی ، خو تاسو ډیر بیعقل یاست ، آیا

تاسو هرنگه دا خیال کوی چې یو پښتون به خپل وطن هیروی او ستاسی سر ،

به ملگری کیږی او د کام پیغور به اخلی .

زما دا سر (حضرت شاه خپل سر ته اشاره کوی) زما سر نه دی دا د وطن سر

دی دا زما دخلکو اوزما داولس سر دی ، دا سر به د دغې خاورې (اشاره ترخپلو

پښو لاندې مځکې ته ) قربانی کیږی !

تاسی څرنگه دا خیال کاوه چې تاسی به زما پر ورونو شپخون کوی او زه

به درته گورم ما په اراده دا فیر وکړ او وار مې صاف نسو کنه د توپک نو ره

مردک به مې ستاسی په مرداوو ځیگرونو کې ور ننوځ کړی وای .

**جنرال کاب:**

(اشاره کرنیل پرېو ته)

کافي ده! اوس د نورو سپاهیانو په باب اعتراف ځني واخله.

**کرنیل پرېو:**

(اشاره حضرت شاه ته)

غداره! دغه سپاهیان هم ستا سره په دغه عقیده او عمل کې ملګري وو؟

**حضرت شاه:**

زه غدار نه یم، وطن‌پرست یم. باید درته ووایم چې اې احمقه! زه په دوی خبر نه یم او زما له خوا به تاسې اعتراف وانه خیستل شي.

**جنرال ټهیلوال:**

(اشاره کرنیل پرېو ته)

نېوابي نور شاهدان راوغواړه.

**کرنیل پرېو:**

د ګزمې نفر دې د شاهدي له پاره حاضر شي.

(په دغه وخت کې دوه کسه سپاهیان له د باندې څخه خېمې ته داخلېږي په عسکري رسم احترام کوي او د میز مخ ته درېږي).

**کرنیل پرېو:**

(اشاره دوو نفرو عسکرو ته)

تاسې ایکا شپه په خېمه کې چې دغه سپاهیان هلته وه څه اورېدلي دي؟

**یو نفر عسکر:**

صاحبان!

ما دومره واورېدل چې د خېمې څخه دغه اواز زما غوږ ته راغی:

(دا د ملکي ترانه زما پر ژبه داسې لګېږي لکه د لړم نېش)

نور نو ما خوښتل چې غوږ ورته ونیسم چې د خېمې څخه یو نفر راووت او زه هم له دغه ځایه ولاړم.

بل نفر عسکر .

ما واورېدل چې دوي وېل فرنګیان زموږ دښمنان دي او هیڅ مو دوستان کېدای نشي .

**کرنیل ډریو :**

( اشاره سپاهیانو ، حضرت شاه او میر باز ته)

ددې شاهدانو دخبرو په باب څه وایاست ؟

**سپاهیان او میر باز:**

(په یوه اواز)

دروغ وایي . مطلق دروغ .

**جنرال تهیلوال:**

ستاسو دغداری په وجه موږ ته دا شب خون ډېر پر قیمته تمام شو نفر مو ووژل شوه او نور مو هم تکلیف زیات شو . ستاسې سره باید څه و کړو ؟

**جنرال رابرټس:**

دا بدبخته غداران په دې نه ارزي چې ډېرې خبرې پر وشي اوس یې و باسی او موږ به دلته خپله فیصله صادر کړو .

(حضرت شاه ، میر باز او سپاهیان ، عسکرو د برچو په شپول کې له خیمې څخه ایستل کېږي . )     (نور بیا)



«فرهاد ظريفي»

# په فيوډاله اروپا کې د هيومانيسم

## منځ ته راتلو ته يوه کتنه

مخکې تر دې چې په اروپا کې د هيومانيسم په منځ ته راتلو باندې رڼا واچول شي. نو بده به نه وي چې د هغې ټولنې اقتصادي ـ اجتماعي شرايط چې هيومانيسم په کې انکشاف وکړ، په لنډ ډول وڅېړل شي.

ګران لوستونکو ته به معلومه وي چې هيومانيسم په فيوډالي ټولنه کې منځ ته راغی، خو دا د دې معنی نه لري چې د لومړي ځل له پاره هيومانيسم په فيوډالي ټولنه کې منځ ته راغلی وي، بلکې د فيوډالي ټولنې د جوړېدو څخه وړاندې د «روم په مريي لرونکي ټولنې کې هم يو فلسفي انجمن د پخوانی يونان د آثارو د څېړلو له پاره منځ ته راغلی و، چې د Studia Hamanita په نامه يادېده او روميانو عقيده درلوده چې د دغه کار په سيوري کې دوی کولای شي د انسان معنوي قدرت ته وده ورکړي او هغه ته په انساني او مدني شکل تبارز ورکړي»(۱) نو ځکه د څېړونکو الا نو په ليکنو کې هغه هيومانيسم ته چې په فيوډالي

(۱) مکتب های ادبی د رضا سيد حسيني ليکنه د تهران چاپ ۱۵ مخ

ټولنه کې منځ ته راغلی داوي هیومانیسم نوم هم ور کړ شوی دی چې زما د
لیکنې مقصد د همدې هیومانیسم څخه دی .

وړاندې مووویل چې نوی هیومانیسم د فیوډالي ټولنې محصول دی ، نواوس
دا ضرور گڼم چې په خوله په فیوډالي ټولنه اوددغې ټولنې په اقتصادي اجتماعي
جوړښت په لنډ ډول رڼا واچوم .

فیوډالي ټولنې چې اقتصادي - اجتماعي مضمون یې فیوډالي روابط دي د مریي
لرونکې ټولنې د ړنگېدو څخه سروا پور ته کړ ، دغې دورې چې تقریباً زر کاله
دوام و کړ د لوېدیځ روم د سقوط چې له کال ۴۷۶ م میلادي سره سمون لري
شروع کېږي، لوموړې امپراتورۍ د څغو وحشي او مواو په ذریعه سقوط و کړ
چې اربران بلل کېدل او د گوتانو ، فرانکانو او ژرمني قومونه یې په څېر
کې نیول .

هغه وخت چې د روم امپراتورۍ د داخلي تضادونو ، بحرانونو ، او کړ-
کېچونو له امله د ضعف او ناتوانۍ په خوا روانه وه ، د دغو وحشي قومونو تېري
چې د نو مورې امپراتورۍ په پولو کې ئې راته وو ، شدت و موند د څلورمې میلادي
پېړۍ په پای کې د روم امپراتورۍ له شول کولای د دغو وحشي قومو او
تېري له مناسب ځواب ور کړي ، له بله پلوه د روم هغه مرئیان چې په ای
رحمانه ډول استثمارېدل ، د دغو وحشیانو سره یې د روم په سقوط کې مرسته
کوله او د روم ښار دروازې یې د دغو وحشیانو پر مخ پرانستلې ، په بل
عبارت د مرئیانو انقلابي جنبشونو په د وحشیانو له حملو سره یووالی پیدا کولو
تر څو چې په کال ۴۷۶ م میلادي کې چې د کوچني رومولوس د امپراتورۍ
سره سمون خوري لوېدیځ روم سقوط و کړ او د وحشي قومونو تسلط پرې ټینگ
شو ، دغو وحشي قومونو د روم د لویو زمیندارانو ځمکې په خوله کتنه ضبط
او په خپل منځ کې یې سره و وېشلې ، خود هغه یې په مساوي ډول عملي نشو
د قبیلې مشرانو ډېرې ځمکې ترلاسه کړې په داسې حال کې چې عادي خلکو
او عسکرو ته ډېره لږه ځمکه ور کړل شوه ، په دې ترتیب په روم کې د لومړي
ځل له پاره د فیوډالي نظام نښې نښانې را څرگندې شوې .

دغه وحشیانو چې په روم باندې د تسلط په وخت کې تدریجاً په اقتدار کې دول
ژوند کاوه، طبعاً د روم سیاسي او په نسبت د لوی امپراتورۍ په وروستۍ پاتې پړاو کې وو،
دوی له خط او کتابت سره آشنایي نه لرله، همدارنګه د تمدن له نورو مظاهرو
څخه بېګانه وو، د دوی پاچاهانو او ځوانانو د جنګ له پاره روزل کېدل، د ګوت قبیلې
په قانون کې د سواد زده کړه د وارو پاچاهانو له پاره منع وه، «د دغه قبیلې د رئیس
لور چې اما لسونتا نومېده غوښتل چې د هغې زوی آلاریک چې د خپل نیکه د
تاج او تخت وارث و، سواد زده کړي خو هغه وخت چې سپین ږیري او درباریان له
دغې خبرې څخه باخبر شول، پاچا ته ورغلل، او له هغه څخه یې وغوښتل چې له دغه کار
څخه مخنیوی وکړي او ورته وویل، دا په د لورو کوچنیانو د پاره ښه سرمشق نه
وي، او هغه وخت چې په خپله پاچا له قانون څخه غاړه وغړوي وې له نورو څخه به
څه امید وارو، د ګوت کوچنیان د دې له پاره چې یو زړور جنګیالي شي، نو د سواد
زده کړې ته کوم ضرورت نه لري، له بله پلوه که د ګوت کوچنیان یو وار د استاذ
له لرګي څخه وډار شي نو هیڅ وخت به ونکړای شي د دښمن تېرې توري ته مقاومت
وکړي» (۱) په دې ترتیب په اروپا کې علم، صنعت، ادبیات او نور د ځوو وحشي
قومونو د تسلط سره سم د انحطاط په خوا روان شول، د خلکو له پاره د کتاب ویل او
د سواد زده کړه منع شوه، یوازې راهبانو او روحانیونو د کتاب ویلو او د سواد زده
کړې اجازه لرله، خو دغو راهبانو او روحانیونو نه یوازې د سواد د پرمختګ او
د علم د پراختیا سره علاقه نه لرله بلکې په دغه لار کې یې خنډونه هم رامنځ ته
کول لکه د روم پاپ چې یوه تن اسقف ته لیکلي وو «اورېدلي مې دي چې تاسو
د ژبې د قواعدو، تدریس کوی، حال دا چې هغه وخت چې زه دا کلمه
په خوله راوړم د شرم احساس کوم ډېر ژر، راته ولیکه چې د دې پوچ

---

(۱) وګوری انسان چګونه غول شد، دریم توک انسان دنیای خود را ګسترش
میدهد، دا پلین سګال لیکنه، د محمد تقي بهرامی حران ژباړه، ۸ مخ د ۱۳۵۲ ش
کال چاپ.

د نوي علم له حصول څخه یې لاس اخیستی دی ترڅو د خدای دربار کې شکر وکاږم» (۱).

په دې ترتیب د جهل او ماړوهي تیاره ورځ په ورځ د منځنیو پېړیو په انسانانو مسلطېدله، دوو قواوو، یعنې رومن کاتولیک کلیسا په معنوي لحاظ او لارډانو او فیوډالانو په مادي لحاظ پر دوی باندې خپله سلطه ټینګه کړې وه. کلیسا فردي تعقل او معلومات تحقیروا وه، د مثال په ډول سنت اګوستن چې یو تن د کلیسا له اصحابو څخه ګڼل کېږي، داسې عقیده څرګندوله چې باید ایمان په ادراک باندې مقدموي او هغه څه چې کلیسا یې وایي بې له دې چې په هغه باندې فکر وشي د منلو وړ او حقیقت دي، د ایمان راوړلو له پاره عقل ته مجال نشته او په دغه برخه کې باید له عقل او احساس څخه استفاده ونشي، لومړی باید ایمان راوړل شي او وروسته د ایمان په ذریعه پوهه ترلاسه شي. چې د اګوستن د غه عقیدې په زوره توګه په کلیسا کې نفوذ وکړ او ډېرو روحانیونو به د نوموړي د اعقیده تبلیغوله.

د نوموړي له دغه طرز تفکر څخه داجوتېږي چې کلیسا په ډېر متعصبانه ډول د خلکو افکار تر تسلط لاندې راوستلي وو، چې د دغې سلطې له امله د مرتیوب دورې علوم، فلسفه او حکمت د انحطاط په خوا روان، او د دغه دورې آثار مطرود ګڼل کېدل. کلیسا په ډېر تعصب سره د هغو آثارو او کتابونو مطالعه چې د مرتیوب (شرک) په دوره کې لیکل شوي وو. کفر او جادو ګڼل او مطالعه یې په غوڅه توګه منع کړې وه. له دې امله وایو چې د منځنیو پېړیو (فیوډالي دورې) انسان د مسیح مذهب په جال کې نښتی و، او هر پېښه که څه هم ډېره ساده به وه، د ډېرې ماوراي طبیعي قوې محصول به یې ګڼلو، د دوی په نظر انسان د یوه چنجي په څېر بې ارادې موجود و چې له خپله ځانه یې کوم اراده نه درلوده، او د ده ټول کړه وړه او سرنوشت له پخوا څخه ټاکل شوي وو، د فیوډالانو او کلیسا د زېښاک له امله توده په بې ساري ډول په فقر کې ژوند کاوه خو کلیسا به

(۱) وړاندې لی ماخذ ۱۳ مخ

دخپلو کړو ډېرو تللو له پاره تبلیغ کاوه چې د دغه جهان نېکه بختي او خوشالي د
دغه چا نصیب ګرځي چې په دغه جهان کې یې ډېر زېږونه ګاللي وي، حال دا چې
په خپله کلیسا او روحانیون د ډېرو ځمکو او سرمایو خښتنان او په دنیا پسې لېوال وو
کې غرق وو، خو نورو ته به یې د صبر او استقامت تبلیغ کاوه، او د دوی د مړا وزو
په لار کې به یې خنډونه رامنځ ته کول، په لنډ ډول په دغه دوره کې انسان خپل
ماهیت له لاسه ورکړی او، روحانیونو او فیوډالانو د دوی انساني کرامت سلب
کړی او فکري آزادي یې له منځه وړې وه، له همدې امله ان ورځ مورخین
فیوډالي دوره توره تیاره او د وحشت ځځه ډکه دوره بولي، خصوصاً د فیوډالي دورې
لومړۍ مرحله چې د لویدیځ روم له سقوط ځځه شروع کیږي او تر صلیبي جنګونو
پورې رسیږي واقعاً ډېره تیاره او د وحشت ځځه ډکه دوره وه، په دغه دوره کې
د روم کاتولیک کلیسا په خپل ټول قدرت سره د پوپ ایالو لوړمکې قوې په
زور په خلکو باندې سلطه ټینګه کړې وه، خو د دغه نظام (فیوډالي) دوهمه مرحله
چې د صلیبي جنګونو ځځه شروع کیږي او تر جغرافیایي لویو کشفیاتو پورې
رسیږي د ختیځ فرهنګ د تاثیر او نورو عواملو له کبله چې وروسته به په مفصل
ډول پرې خبرې وشي د علم رڼا په لویدیځ کې خوره یږي، په دغه مرحله کې ښارونه
د لاسي صنایعو او تجارتي ډېرا کړې ورکړې د مرکزونو په څېر منځ ته راځي او انکشاف
مومي د ښارونو منځ ته راتلل چې فیوډالي ضد خصلت یې درلود، د هېوادوالو د منځ
راتلو د پاره زمینه برابروي نو ځکه د لته، دا لازمه ګڼل کیږي چې د ښارونو په
منځ ته راتلو باندې په لنډ ډول رڼا واچول شي.

لکه چې پوهیږو په فیوډالي نظام کې ځمکه چې د تولید عمده وسیله ده د فیوډالانو
په لاس کې وه، او سرف د دغه ځمکې په کرلو او پیلو مجبور وه، او د دغه کار په
څنګ کې به یې د فیوډال ارباب نور د ضرورت وړ شیان لکه پوټونه، د جامو له پاره
ټوکر او نور برابرول، چې په دغه حال کې سرف د لاس مصنوعاتو په جوړولو کې
هم مهارت پیدا کړ، او په موازي د خپل ارباب د ضرورت وړ شیان به یې جوړول بلکې
وی کولای شول د خپل ارباب د اړتیا په نسبت لږ څه زیاد کالي تولید کړي او

دغه کالي به ئې په نورو ښارونو کلیو او په کومو ځایونو کې به چې او ولیز بازار جوړېده و پلوري .

د فیوډال ارباب زیات زیاتی او فشار د دې باعث شو چې صرفان د فیوډال له کلا او کلي څخه په تښتېدلو پیل وکړي دغه صرفان چې صنعتکاران هم وو، د کلیسا گانو، کاروانی لارو، او کاروانسرایونو په څنگ کې به کښناستل او د لاس مصنوعاتو په جوړولو یې پیل وکړ. ځینو نورو صرفانو په د خپل ارباب څخه د هغو پیسو په مقابل کې چې د خپلو مصنوعاتو د خرڅولو له امله به یې لاس ته راوړې وې خپله آزادي اخیستله او په یاد شوو ځایونو کې د نورو صرفانو سره یوځای کېدل . او په دې ترتیب د ښارونو د منځ ته راتلو هسته د کاروانی لارو د تقاطع ، کاروانسرایونو او د کلیسا گانو په شاوخوا کې منځ ته راغله او په ودې یې شروع وکړه په دغو ښارونو کې به د کالیو د راکړې ورکړې په څنگ کې خلک د مختلفو فرهنگونو سره هم آشنا کېدل ، خصوصاً د ختیځ کاروانو نه چې د قیمتی کالیو په څنگ کې به یې د اسلامی امپراتوری پرمخ تللی فرهنگ هم هغوی ته ورپېژندلو .

د اسلامی امپراتوری فرهنگ د هند ، چین ، افغانستان ، مصر او نورو هیوادو د فرهنگونو د امتزاج محصول و ، چې په خپل عصر کې د ډېرو پرمخ تللو او روښانو فرهنگو له جملې څخه و ، په دغه امپراتوری کې نجوم ، معماری کیمیا گری او د علم نورو ساحو چټک پرمختگ کړی و ، پوهان په آزادانه ډول په دغه لویه امپراتوری کې په څېړنه او تحقیق بوخت وو ، د یونان او روم له فلسفې او علومو سره آشنا او هغه کتابونه چې په دغو لرغونو هیوادو کې لیکل شوي وو ، په عربی ژبه ترجمه کېدل ، المجلسی د بطلیموس دېرش جلده کتاب چې د ځمکې او ستورو په باره کې یې لیکلی و ، په عربی ژبه ترجمه کړ ، ابن هیثم د یونانی هندسی او هندي جبر سره آشنایی پیدا کړه ، د دغه لویې امپراتوری پوهانو او ساینس پوهانو ، ارشمیدس او د یونان او روم نور عالمان وپېژندل ، او د هغوی آثار یې تر څېړنې لاندې ونیول او هم په خپله د اسلامی نړی څخه یو زیات

شمیر لوړو پوهانو لکه ابن رشد ، ابن سینا ، البیروني او نورو سرا وچت کړ، او
په دغه لړۍ کې مدرسې ، کتابخانې او رصدخانې د څېړونکو او عالمانو له پاره
پرانستل شوې وې په دې وخت کې د اسلام خلیفه ویلي وو « ... هغه رنګ د شهید تر
وینې مقدس دی په کوم چې یو عالم خپل فکر د کاغذ په مخ راوړي» (١) په دې
ترتیب وینو چې په هغه وخت کې چې په لویدیځ کې د علم او فرهنګ لمر ډوبېدو
په حال کې و، په ختیځ کې د علم رڼا هرې خوا ته خوره وه، او د هغو کاروانو-
نو سره یو ځای چې د ورېښمو او ادوېې له لارو به یې د ختیځ محصولات لویدیځ ته
وړل دا رڼا به یې هم لویدیځ ته له ځانه سره وړله او په نوو منځ ته راغلو اروپایي
ښارونو کې به یې اغېزه په ښه ډول احساسېدله ، په دغو اروپایي ښارونو کې
د اقتصادي تحولاتو او فرهنګونو د امتزاج له کبله د ښاري فرهنګ رشد سرعت
ومونده . چې دغه ښاري فرهنګ طبعاً فیوډالي ضد خصلت درلود ، په ښارونو کې
د لومړي ځل له پاره د کلیسا د مخالفتونو سره سره غیر مذهبي مدرسې منځ ته
راغلې چې مخ په زیاتېدو وې د ادبیاتو په ساحه کې هم د ښاري فرهنګ تأثیر
ښکاره شو او موږ ی تأثیر د ( ګیدړ ) په داستان کې په ښه توګه لیدلی شو . په
دغه داستان کې فیوډالان او روحانیون تمسخر شوي دي په دغه داستان
کې چې یو ګیدړ د حیلو له امله په اعدام محکومیږي او ځرلګه چې ژمنه کوي
چې په صلیبي جنګونو کې شرکت وکړي له اعدام څخه معافیږي » (٢) ځرلګه
چې دغو ښارونو په چټکتیا سره انکشاف کاوه د یوولسمې څخه تر دولسمې میلادي
پېړۍ پورې د پېر داسې ښارونه منځ ته راغلل چې د فیوډالانو
له سلطې څخه آزاد وو، او خلک به کې په آزاده توګه په صنعت او سوداګرۍ
بوخت وو چې د دغو ښارونو له پاره یې د انکشاف او ودې زمینه برابره او له او په

---

(١) انسان چگونه غول شد ، دروم ټوک ، انسان دنیای خود را گسترش میدهد
دایلین مگال لیکنه ، د محمد تقي بهرامي حران ژباړه ٣٦ مخ دچاپ کال ١٣٥٣
(٢) مقدمه ای برسیر تفکر در قرون وسطی ، د محمد رضا فشاهي لیکنه ، ٨٧ مخ
د ایران چاپ ١٣٥٢ ش کال

خوارلسمه میلادي پېړۍ کې دژن، وینز، پارس، آرله او نورو ښارونو د ېر انکشاف وکړ، په هغه وخت کې وینز د ایتالیا د ډېرو لویو ښارونو له جملې څخه گڼل کېده د دغه ښار په زراد ـ خانه کې ۱۶۰۰۰ تنو او د ډېرو نورو لویو په کارخانو کې چې جنگي او تجارتي بېړۍ یې جوړولې ۳۶۰۰۰ تنو کارکاوه چې د دغه ښار سوداگرو د مسیحیانو او مسلمانانو ترمنځ په سوداگرۍ بوخت وو. پترارك د ایتالیا مشهور هیومانست د هغو بېړیو په باره کې چې د وینز ښار په بندرونو کې یې لنگرونه اچولي وو، داسې لیکلي دي «په دغه ځای کې داسې بېړۍ لیدل کېږي چې زما د ماڼۍ په شان لوړې دي، او د هغوی بادبانونه زما د ماڼۍ تربرجوهم لوړ دي، دا بېړۍ هغو غرونه ورته دي چې د اوبو پرمخ د شنا په حال کې وي... دا بېړۍ د دنیا له سیندونو څخه تېرېږي او له زرهاو خطرونو سره مخامخ کېږي، دا بېړۍ انگلستان ته شراب، روس ته عسل، زعفران، او غوړي، سوریې، ارمنستان، ایران او عربستان ته کتان، مصر او یونان ته لرگي له ځانه سره وړي او د دغو هیوادو څخه نور کالي را وړي چې له دې ځای څخه د جهان نورو سیمو ته تقسیمېږي» (۱) په دې ترتیب وینو چې د ښارونو انکشاف، د ختیځ له تمدن سره آشنایي دا هغه عوامل دي چې زمینه یې د هیومانیسم منځ ته راتلو ته مساعده کړه، نو ځکه د دغه نهضت لومړي آثار په هغو هیوادو کې راڅرگند شول چې د نورو هیوادو په نسبت یې د ختیځ سره په تماس کې وو، دا ځکه لکه مخکې موچې اشاره ور ته وکړه په هغه وخت کې چې د لوېدیځ تمدن د انحطاط په خوا روان و، د اسلامي جهان پوهانو، د هغې دمخې له کېله چې د علم سره یې لرله په دغه لار کې یې لوی گامونه اخیستي وو چې اروپایانو د صلیبي جنگونو او تجارت په ترڅ کې د ختیځ د دغه پرمخ تللي تمدن او فرهنگ سره آشنا شول او د هغو آثارو په ژباړنه او خپرنه یې پیل وکړ کوم چې د اسلامي امپراتورۍ څخه د دوی لاس ته ورغلي وو

---

(۱) تاریخ تمدن، د ویل د و رانت لیکنه، د رنسانس برخه ۱ ټوك د سهیل آذري ترجمه، د ایران د آفست سهامي شرکت چاپ ۶۲ مخ ۱۳۴۰ ش کال.

دهغو آثارو لومړي مترجمين يهوديان وو ، او يهوديانو د هغه زيات تماس له امله چې داسلامي جهان سره يې درلود په عربي ژبه پوهېدل .

يهودي شموئيل (١١٥٠ - ١٢٣٢ م) دابن ميمون كتاب د «رهنماى سرگشتگان» په نامه په عبراني ژبه ترجمه كړ او په يهودي جهان كې د ژور تحول سبب وگرځېد ، دده زوى موسى بن طيبون داقليدس ، اصول هندسي كتاب ، دابوعلي سينا د قانون په نامه كتاب ، دزكرياى رازي د ترياق په نامه كتاب ، دابن ميمون پرشهور كتابونه، دابن رشد تفسيرونه او دارسطاطاليس حكمت له عربي څخه ترجمه كړل يعقوب انا تولي چې په كال ١١٩٤ ميلادي كې زېږېدلى و ، ددويم فرېدريک په غوښتنه ناپل ته ولاړ او دابن رشد تفاسير يې له عربي څخه په عبراني ژبه ترجمه كړل چې دهغو آثارو څخه تقريباً ټول يې بېرته په لاتين ژبه ترجمه شول په دولسمه پېړۍ كې كنستانتين دزكرياى رازي كتاب دالتجارب په نامه دده نور كتابونه دجالينوس اثرالستريح او دبقراط اثرالفصول چې دابوزيدحنين له خوا په عربي اړول شوي وو ، په لاتين ژبه ترجمه كړل . او د مقدمه يې پر سېر تفكر در قرون وسطى كتاب د ليكوونكي په قول همدا نوي يا اشبيلي يوحنا دابو علي سينا ، غزالي ، فارابي او خوارزمي تقريباً ټول كتابونه ، كتابونه ترجمه كړل ، انګليسي ادلارد Adelard په كال ١١٢٠ ميلادي كې داقليدس هندسه ، دعربي ترجمې له مخې په لاتين ژبه ترجمه كړه دعربي آثارو بل لوى ژباړونكى ژرارد Gerard ومېږي ، دى چې دې كريمونا او په كال ١١٦٥ كې دټولدو ښار ته راغى او دعربو آثارو ته دحكمت ، الهياتو او ادبياتو په برخه كې حيران شو او تصميم يې ونيو چې له هغو جملو څخه په زړه پورې او ګټورې يې ترجمه كړي نوموړي دخپل عمر (٩) كاله په دغه كار تېر كړل او عربي ژبه يې په ښه ډول زده كړه ، نوموړي د يوه عرب او يوه مسيحي په مرسته ٧٢ جلده كتابونه وژباړل او غرب (لوېديځ) جهان له پاره كې دستاينې وړ خدمتونه وكړل .

دغو ترجمه شو آثارو له مخې اروپائيان نه يوازې داسلامي جهان له آثارو سره بلكې د يونان او روم له فلسفې او حكمت سره هم آشنا شول او دغو ترجمه شوو كتابونو اغېزه په اروپائيانو تردې حده وه چې راجر بېكن ليكلي دي « فلسفه

له اسرا یو خطه مولږ ته رارسېدلی دی» (۱) په اروپا یې یو هغو لوئو کې داسلامي
نړۍ مادي گرایو فلاسفو (فیلسوفانو) لکه فارابي، ابن رشد، ابن سینا، ابن میمون
او نورو نظریات خپاره شول . دابن رشد اثر (تهافت - التهافت) او د نورو سوري
تفاسیر د دیارلسمې پېړۍ په لومړیو شلو کلونو کې پاریس ته ورسېدل او د مادي
گرایي افکار وانتشار ته یې په اروپا کې شدت ورکړ او د دوی و الهیونو فکري
پنځتونه یې متزلزل کړل د (۲) همدا رنگه د همدې پېړۍ په سر کې په ایتالیا کې
هم ابن رشد گرایي ډېر نفوذ کړی و، «په کال ۱۲۳۰ میلادي کې ویلیام چې اصلاً
داورني و، داسې لیکلي دي: د یو هغو لوئو ډېر افراد دابن رشد په استنتاجونو یې
له کومې ځېړنې باور لري» (۳) په همدغه وخت کې دابن رشد دافکارو تر تأثیر
لاندې سي ژوچې د کلیسا له روحانیونو څخه و، خپله نظریه داسې وړاندې کړې ده:
جهان جاویدان دی او د طبیعت قوانین لا یتغیر دي . چې دا نظرېې روحاني له دغه
نظر یې څخه د خپلو (داسلامي امپراتورۍ) فرهنگ نفوذ په اروپا کې په څه
ډول څرگندېدلای شي .

د دغو آثارو د آشنا کېدو سره یو ځای اروپا یې روښنفکرانو د یونان او
روم کلاسیکو آثارو ته هم توجه زیاته شوه او د دغو آثارو په لټولو او څېړلو
یې شروع وکړه، د دغو روښنفکرانو چې خاوند هیومانیستان بلل په دیارلسمه
پېړۍ کې منځ ته راغلل، دوی د پخواني یونان او روم له فرهنگ سره ډېره مینه
لرله او د دغه فرهنگ داحیا کولو طرفدار وو او د دغو هیوادونو لیکوالانو او
شاعرانو ته یې ډېر اهمیت قایل وو، د مثال په ډول اراسموس صراحتاً یې دي اعتراف
کوي چې پخواني متفکرین چې گمراه او بت پرست گڼل کېږي د قدیسانو په جمله
کې راځي او د کلاسیکو لاتینو له علماو څخه به او ر تر دي، او یا مثلاً دانته (۱۲۶۵-
۱۳۲۱) ایتالیایي شاعر په خپل مشهور اثر کې چې (کومېډي الهي)
نومېږي، ډېر ژبل د هر کت او بت پرستی دوران لوی شاعر د السالی عقل مظهر گڼي

---

(۱) مقدمه یې ار سور تفکر در قرون وسطی ۸۶ مخ

(۲) یو ر تنی ماخذ ۱۱۱ مخ

(۳) یور تنی ماخذ ۱۱۳ مخ

دانته په دغه اثر کې دوزخ په داسې حال کې مجسم کوي چې د مسیحي ستمگرانو
ځای دی ، خو د شرک او بت پرستۍ دوران شاعران نه په کې ایښودل کیږي
د دانته دغه فکري څرنګوالی د ده د یونان او روم د فرهنګ سره د مینې ښکارندوی
دی او هم په دغه طرز تفکر کې له مسیحي ستمگرانو (فیوډالان او روحانیون) څخه
د کرکې نښې نښانې ښکاره دي. هیومانستانو غوښتل چې د منځنیو پېړیو (فیوډالي
دورې) انسان د کلیسا تیارو څخه د علم رڼا په خوا رهنمایي کړي ، او هغوی
د کلیسا له جزمي ، جامدو او دګماتیکو عقایدو څخه خلاص او د آزاد اندېښنې
خواته بوزي ، او فکر یې چې د کلیسا او روحانیونو په ذریعه په دایمي توګه
ماوراي طبیعت ته متوجه و ، د دې جهان ښکلاته را وګرځوي او د کلیسا څخه
د مطلقې پیروۍ په ځای خپله په شعور او فکر کولو بوخت شي. او هغه انسان چې
په دغه دوره کې یې خپل ماهیت له لاسه ورکړی و ، باید پېژندل شوی وای او
د دوی (هیومانستانو) په نظر د انسان پېژندنه یوازې د یونان او روم د آثارو د مطالعې
له لارې حاصلېدلی شي ، داځکه چې په دغو آثارو کې انسان پېژندنې په ډېره زوره
توګه تجلي کړې ده . د دې له امله چې دغه آثار عموماً په لاتین ژبه منځ ته
راغلي وو ، نو ځکه د هیومانیسم نهضت هم د لاتین ژبې په تحصیل او یوناني
او رومي آثارو په تقلید شروع شو.او هیومانستانو د یونان او روم آثار خپل سرمشق
وګرځول ، او د دغو آثارو په لټه کې شول او د کلیساګانو له کنجونو او نورو
ځایونو څخه چې د اسقفانو ، پاپانو او روحانیونو لاسونه هغه ځای ته نه وو رسېدلی
دغه آثار یې را پیدا او ترشېړنې لاندې ونیول شول .

پوجو د سویس په یوه ړنګه او کثیفه کوټه کې د کوینتیلیان د (مبادي سخنوري)
په نامه کتاب وموند ، او همدې پوجو د لرغوني جهان د نورو ډېرو لیکوالانو
کتابونه په مختلفو ځایونو کې وموندل لکه د لوکرتیوس Lacretius فرونتینوس
Frontinus والریوس فلاکوس Valerines Flaccus پلوتوس Plautas او د هغو نورو
لیکونو متنونه چې د سیسرون په نوم لیکل شوي وو .

همدارنګه کولوچو سالوتاتي Colucciaosalatati د سیسرون اثر د (دوستانو ته
لیکونه) په نامه په ورچلي کې له خاورو څخه راوایست، ګرارډو لاندریاني
Gheravdo ondriani په لودي Lodi کې د سیسرون د معاني او بیان رسالات
کشف کړل او هم د تاسیتوس اثر د دیالوګ Dialogi په نامه په آلمان کې کشف شو
همدارنګه تقریباً نیمه پېړۍ وړاندې د قسطنطنیې له سقوط څخه دولسو تنو
هیومانستانو یونان ته سفر وکړ او له هغو څخه یوه تن ای چې جواني اوریسپا
Giovanni Aurispa نومېده تقریباً ۲۳۸ قلمي نسخې وموندلې، او بل نفر
چې ارانچسکو فیلفو Filelfo نومېده د هېرودت، توسیدت او نورو کتابونه
لاس ته راوړل او هم د قسطنطنیې د سقوط په وخت کې په زرهاو توکه کتابونه
د یونان له آثارو څخه ایټالیا ته یووړل شول، «له همدې امله لاتراوسه هم د لرغوني
یونان ډېرې نفیسې او قیمتي قلمي نسخې د ایټالیا په کتابخانو کې موندل کېږي» (۱)

نو موږ لاس ته راغلي کتابونه او آثار او هم هغه آثار چې له عربي ژبې څخه
ترجمه شوي وو، له سیلان څخه تر لندن پورې یا په بل عبارت په ټوله اروپا کې ترشېږني
لاندې ونیول او د اروپا په روښانفکره قشرونو ژور هم تاثیر وکړ، چې د هیومانیسم
د لا پراختیا له پاره یې شرایط برابر کړل او دغه نهضت په انکشاف شروع
وکړه. خود دغه انکشاف په لار کې ډېرې قربانۍ ورکړل شوې او ډېر خلک د کلیسا
له خوا ځورول شوي وسوزول شول، کلیسا چې د منځنیو پېړیو یوه جباره دستګاه وه د خلکو د
افکارو او عقایدو د څارنې له پاره یې یوه دستګاه چې Inquistion په
نوم یاده له منځ ته راوړه چې د دغې دستګاه مقصد یوازې د فیودالي کلیسا د ګټو
ساتنه وه سره له دې چې کلیسا او د کلیسا مربوطې دعاېدو د تفتیش دستګاه په
اروپا کې د نوو منځ ته راغلو هیومانستیکو افکارو د مخنیوي له پاره په ډېر وجدي
اقداماتو لاس پورې کړ، خو ونه شو کړای د دغو افکارو مخنیوی وکړي نوموړي
افکار په سرعت سره په اروپا کې خپرېدل او د فیودالي نظام او فیودالي کلیسا

(۱) تاریخ تمدن دویل دورانت لیکنه، د سهیل آذري ترجمه ۱۵ ټوک
۱۲۹ مخ د ایران د افست سهامي شرکت چاپ ۱۳۴۰ ش کال

د کلیو د اسکورولو زمینه یې برابروله . له بله پلوه په نولسمې پېړۍ کې
وړاندې لګه او د نوي بورژوازۍ منځ ته راتلل زمینه د هغو طبقاتي مبارزو
منځ ته راتلو ته په پراخ ډول برابره کړه کومې چې په دیارلسمې او څوار-
لسمې پېړۍ کې د جان هوس، واټ تایلر، جان بول، ژاکرۍ او داسې اورو ترقیا-
دت لاندې منځ ته راغلې چې دغه مبارزې د پیارې غربو تودو له ملاتړ څخه بر-
خورداره وې .

لکه چې وړاندې موږ ووېل هیومانیستي نهضت لاتین ژبې ته ډېر اهمیت ورکا-
وه، او د خلکو ژبه یې تحقیروله، چې په دغه مورد کې هیومانیستان
حق به جانب هم دي دا ځکه چې څه په منځنیو پېړیو کې او څه وړاندې له منځنیو
پېړیو څخه ډېر کتابونه او آثار په دغه ژبه منځ ته راغلي وو، لاتین ژبه د
علم او فرهنګ منبع او له دغه لحاظه ډېره غني ژبه ګڼل کېدله، نو ځکه په دغو
پېړیو کې روښان فکره اروپایان او هیومانیستان دغه ژبې ته په ډېر اهمیت قایل
وو، له همدې امله هیومانیستانو دادبیاتو په برخه کې یوډول اشرافي ادبیات
منځ ته راوړل له بله پلوه خلکو هم یوډول ساده او عامیانه ادبیات منځ ته راوړل
چې د دغه دوو فرهنګونو د امتزاج محصول یو نوی فرهنګ و چې رنسانس بلل
کېږي . د رنسانس لومړۍ مرحله په ایټالیا کې شروع شوه ، د ایټالیا خلک د
رنسانس عصر د نوي متولد Larinascila په نامه یادوي د دوی په عقیده د بربرانو
د زړو کلونو تسلط څخه وروسته بیا د یونان او روم لرغوني فرهنګ ژوند وموند
په آخر کې یو ټکی باید په نظر کې ولرو او هغه دا چې په خپله هیومانیزم په
مستقیم ډول په اروپا کې د تحولاتو سبب نه دی شوی بلکې دغو تحولاتو ته یې لار
هواره کړله د هیومانیزم په منځ ته راوړلو کې د پټرارک ، بوکاچیو او دانته
نومونه د یادولو وړ دي چې وروسته کوپرنیک ، جردانو برنو ، ګالیله ، نیکلا-
ماکیاولي ، ژان بودن ، توماس مور ، فرانسس بېکن ، ولتېر ، د یدرو او نورو
په دغه برخه کې خورا لوی قدمونه واخیستل .

# دا خوک ؤ ؟؟؟

چې په توره کې دروه رستم زال ؤ — چې په شعر د حسان عرب مثال ؤ

دانګریز ټېنسن ، د فارس سعدی ؤ — ګو ټې د جرمنی ، د هند اقبال ؤ

چې خامې یې په لیدو مست و مدهوش شول — جام د شعر یې له کیفه مالامال ؤ

چې له تورې یې د توري سرخرو یې شوه — چې له مینې یې ممنون حسن وجمال ؤ

چې هیڅ تیر د تخیل یې خالي نه تی — رام یې طبعې ته د هر مضمون غزال ؤ

له تمکینه چې یې غرو نه هر میډ له — متانت ته یې دزړه په حیرت ډال ؤ

چې یې نن په نامه ناز که پښتنو اله
ننګیالی د زمانې خټک خوشال ؤ

عبدالشکور رشاد
۱۸ ثور ۱۳۴۵



له Stories from Dickens څخه

ليكوال : Charles Dickens

ژباړونکی م. ن. ستانيزی

# لنډ داستان

## اوليور توېست

اوليور ټوېست يوې کليسا په مرستون کې زېږېدلی و د غه مرستون په يوه کوچنۍ ښار کې موقعيت درلود چې د لندن د لوی ښار نه دا وياميلو په شا و خوا کې لرې پروت و. د اوليور توېست بدمرغه مور چې خپل زوی يې د يو ځل لپاره هم په سترګو ونه ليده د يوه سړك پرغاړه د سوزنده تبې او ناروغۍ په حال کې پرته وه، بدل چې هغه وليده نوزره يې پروسواو د کليسا مرستون ته يې يو تله څنګه چې اوليور توېست وزېږېده نو د هغې سترګې هم بې له دې چې خپل ماشوم ووينې د تل له پاره پټې شوې او خپل ماشوم زوی يې د زمانې ناخوالو ته يوازې پرېښود.

هېڅا هم په دې هکله څه معلومات نه درلودل چې دا ښځه څوك وه؟، له کومه راغلې وه؟ او چېرته تلله؟ سره له دې چې د کليسا د مرستون له خوا اعلان هم وشو چې: که هرچا ته د دې ښځې د پلار او يا مور په هکله څه معلومات وي لورا دې شي اومو ږ دې خبر کړي شل پوله جايزه دې هم واخلي،

خو هیڅوك هم پیدا نه شو چې د پیدا شوي ماشوم مور او پلار و پېژني، بهلول او بهیل به د کلیسا د مرستون په لمبو ته او ماشومانو چې مور او پلار به یې نه درلودل نو سونه کېښودل نو ځکه بهیل به د دې پې موره او بې پلاره ماشوم داو لیورتوپست نوم کېښو د. وروسته له دینه اولیورتوپست د مرستون نورو ماشومانو سره اوسېده.

څه موده وروسته بهیل، او لیورتوپست د مرستون ښوونځي ته بوتلو چې هلته یو څه زده کړه وکړي، او لیورتوپست په دغه وخت کې د ماشومتوب د عمرونه پسرلی په مرستون کې په ډېره سختۍ تېر کړي وو دده ژوند په مرستون کې په ډېر کړاو او بې خوندۍ تېرېده له خپله بخته ډېر نا امیده و او په ډېره نهیلۍ یې د ژوند شپې ورځې تېرولې په هغه کوټه کې به چې او لیورتوپست او نورو ماشومانو ته ډوډۍ ورکول کېده یوه لویه خونه وه چې غولی یې په ډبرو فرش شوی و او یوې څنډې ته یې مسینې کټارې لګېدلې وې هلته به یو ښوونکی اوړده څمڅۍ په لاس ولاړو چې د ډوډۍ په وخت به یې هریو ته یوه څمڅۍ اوماچ په یوه کنډول غوړي لوښي کې اچول چې هغه به د یوه ماشوم هم نه تر خولې کېده نه تر ګېډې، په دې ډول به هره ورځ او لیورتوپست او دهغه نور ملګري داوږې له لاسه خورا په بد حال وو، تر له ورځ به یې داوږې له لاسه کولمو نرۍ نرۍ دره کاوه دیوه ماشوم په رنګ کې هم له اوږې څاڅکی وینه نه وه دټولو رنګونه تک ژېړ او وښتی ووخو چاله خوایې نه چې هم له هغو ایستلی دوی به دې بوربدل هسې نه چې له دې ځایه سوهم پسې وشړي.

خو څه موده وروسته دمرستون ټول ماشومان لوږې داسې پسې واخیستل چې یوه هم په وس پوره نه وه چې غلی کېني اوڅه دې ونه وایي هغه ستل دی چې (بربنډ له لارې اوړي خووږي له لارې نه اوړي) په دوی هم همدا ټو که شوې وه آخر سره را ټول شول او وې ویل چې ایګاه ته به له ښوونکی سره اوره پر هغې ډوډۍ چې را کوي یې نوره هم وغواړو، خوبوه هم زړه نه شو کولی چې اومړی ور یور ته شي اخری به دې خبره سره پر ېکړه وکړه چې په پچه «قرعه» به یو کس سره معلوم کړو دهر سړی په نامه چې وختله، د ټولو په همدې کار خوښه شو. پچه چې واچول شوه نو دا او لیورتوپست په نامه و ختله.

دغه ورځ ټولو هلکانو په ډېره تلوسه تېره کړه ټول په دې فکر کې وو چې
بېګاه ته به څه پېښېږي ډوډۍ به زر را ته شي او که دا به هم را باندې ودرېږي. ماښام
بیا د ډوډۍ وېش پیل شو او هر هلک ته یوه یوه څمڅۍ او ماچ ور کړل شوه چې
هر یوه د سترګو په رپ کې خلاص کړل، هلکانو او لیور توېست ته سترګکونه وهل
چې ښوونکي ته ور پورته شي خو او لیور توېست په کله هلکانو او کله ښوونکي ته
چې دده له قدنه هم اوږده څمڅۍ په لاس کې وه. په ډېره ډېره کتل چې په دې وخت
کې دده څنګه ته ناست یوه هلک دی په نیغ ووا هه چې پورته شي.

اولیور توېست چې له لوږې او خپل د بدمرغه ژوند نه پوزې ته راغلی و په
ډېره بې پروائۍ او بې باکۍ را پورته شو دا ومالچ کاسه او کاچوغه یې په لاس
کې واخیستله او لیږ د ښوونکي مخې ته ودرېده او ورته وېې ویل. «صاحبه! لطفاً
ما ته لږ نوره ډوډۍ هم را کړئ».

په دې وخت کې د ټولو هلکانو سترګې او غوږونه د ښوونکي او اولیور توېست
په لور متوجه وو ښوونکی د اولیور توېست په خبره ژېړ و او وېښت او په ځیر ځیر یې
هغه ته وکتل اولیور توېست چې دا وخت د مسو دګتاري په ژړ نکېه کړې وه
کاچوغه او تشه کاسه ئې هم په لاس کې نیولې وه او په خورا بې پروائۍ ولاړ و.

ښوونکي په اریانو ونکې او ازپوښتنه څنې وکړه چې «څه دې وویل؟ اولیور-
توېست خپله غوښتنه بیا تکرار کړه «صاحبه زه مړ شوی نه یم لطفاً ما ته لږ نوره
ډوډۍ هم را کړئ.»

اولیور توېست لا خبره سمه نه وه خلاصه کړې چې ښوونکي یې څمڅې په سر
داسې ورخلاصه کړه چې د سترګو تور او سپین یې سره یو شول او په سترګو یې تیاره
راغله په دې ډول ښوونکي هغه ته د هغه د غوښتنې ځواب ور کړ، ورپسې ښوونکي
پیډل ته ناري کړې او هغه ته یې ټوله کیسه وکړه د پیډل په امر اولیور-
توېست په یوه تنګه او تپه تیاره خونه کې ایندې کړی شو نورو هلکانو چې
دغه حال ولیده نو ټول له وېرې چوپه خوله شول سهار ته د مرستون په دروازه باندې
یو اعلان وځړول شو لیکلي یې وو چې « هر څوک چې اولیور توېست کلیسا نه مرستون

هغه ځان سره د شاګرد په ډول بوځي او مرستون یې له شره خلاص کړي او پنځه
پونده بخشش به هم ورکړی شي .»

څو ورځې وروسته بېبل ، او لیور توېست له ځان سره مرستون ته ښار ته روان
کړ ، او لیور توېست پوهېده چې بېبل یې چېرې بیایي خو دا په وېره کې و ، بېبل
او لیور توېست د ساور بېري دوکان ته بوته ساور بېری په وله لور
او خوار سړی و هغه د چا خبره بو سیخ غوښه هم پکې نه وه ، بېبل او
او لیور توېست چې وررسېدل نو هغه د خپل دوکان دوره په بورې کولو
لګیا وو . ساور بېری د تابوت جوړولو کار کاوه کله یې چې بېبل او او لیور توېست
دواړه د دکان په لور راروان ولیدل نو په ډېر صمیمیت یې وویل اوه دا ته
یې بېبله ! او دا به هم هغه هلک وي چې د مخه دې راسره د ده په هکله خبرې
کړې وې هماسې نه ده ؟ بیا نو یې له دې نه چې د هغوی ځواب ته منتظر شي
خپلې ښځې او پکسېن ته چې په وله تونته او د ده نه هم نری او خواره وه وږغ
کړه چې « کرا اې دلته راشه » هغه راغله او په داسې حال کې چې او لیور توېست
ته یې له سرنه تر پښو ځیر ځیر وکتل خپل مېړه ته یې وویل : دا هلک خو ډېر
کوچنی دی له خوارۍ نه بیخی د هډوکو امیل ترې جوړ شوی دی بیا یې
او لیور توېست ته وویل چې له زینو نه راښکته شه ورپسې یې او لیور توېست تېل
واهه چې له زینو نه لاندې نمجنې آشپزخانې ته ولوېده چې هلته یوه نارولې او
خور نه انجلۍ هم ناسته وه .

ساور بېری هغې انجلۍ ته ورنارې کړې او ورته وې ویل شارلوت د ډوډۍ
هغه ساړه او وچ پېشانۍ چې سپي ته موسا تلي وو د دغه هلک ته ورکړه بیا یې
وویل : زه په جرأت ویلی شم چې دا هلک دومره پاک خور نه دی چې هغه پېشانۍ
دې ونه خوري بیا یې او لیور توېست ته مخ ور واړوه او ورته وې ویل : هماسې
نه ده هلکه ! او لیور توېست له وېرې لکه د توت پاڼه رپېده او څرنګه چې لوږې
هم بېسې اخستی و نو په ډېره لېوالتیا یې وویل : نه صیب . شارلوت د هغه مخې ته
د ډوډۍ د وچو پېشانو ډکه کاسه کېښوده او لیور توېست ژر ژر د ډوډۍ د وچو او

سړو خندل او په خوړلو پیل وکړ یوه شیبه وروسته چې اولیور تویست ټوله ډوډۍ خلاصه کړه د ساوربېري ښځه راغله هغې چې کاسې ته وکتل وې لیدل چې ټوکرۍ ډوډۍ یکې له ده پاتې شوې او په اریانتیا یې ترې له پوښتنه وکړه چې ډوډۍ دې ټوله خلاصه کړه؟ هغه ځواب ورکړ هو. د هغې هیڅ باور نه راتلو چې کوندې دا دومره وچه څو ورځنۍ اړ خنډه له ډوډۍ دې اولیور تویست وخوړلی شي، خو لوږه رښتیا چې بد شی دی.

د ساوربېري مېرمنې هغه ته اشاره وکړه چې په ماښپ راځه چې د ملاستې ځای دې دروښیم. اولیور تویست په هغې پسې غلی روان شو د پخلنځي له زینو نه چې راښکته شول نو بیرته یې هغه د تابوت جوړولو دوکان ته بوته او هلته یې ورته وویل چې د دغه ستر میز لاندې تابوت کې ځمله هغه چې ترې نه لاړه نو اولیور تویست خوارکی په هغه تابوت چوله صندوق کې خانته ځای پیدا کړ او څملاست. سهار د وخته هغه د دکان دی دروازې په ګړېو لوچي چا د بهر څخه وهله له خوبه راپورته شو ور پسې یوه سړي په زوره غږ هم وکړ:

چې دروازه خلاصوې که نه؟ اولیور تویست چې سمدستي له خوبه راپاڅېدلی و او سترګې یې سپېلې زر زر یې د کار کالي واغوستل نو وې ویل: «صاحب! دستي یې خلاصوم»، ده چې د دکان ور پرانیست نو وې لیدل چې د دروازې شا ته یو غټ سړی چې غوښن مخ لري په یوه ځوکۍ ناست دی. د غه سړي وړې وړې سترګې درلودې ډوډۍ یې له کوچو سره خوړله د اولیور تویست خولې ورته اوبه وکړې د هغه له هر ځل سړي کولو سره به یې خولې لاړې تیرولې او سترګې به یې د هغه د لاس سره سمې ښکته او پورته کولې بیا یې ترې نه په ډېر ادب پوښتنه وکړه بښنه غواړم صاحب ستا سو کوم تابوت پکار و؟ هغه اولیور تویست ته په تمسخر وویل ته اوس دومره شوې چې له ما سره هم ټوکې وکړې؟ د خبرې د خلاصولو سره سم هغه راپورته شو او اولیور تویست ته یې یوه کلکه لغته ورکړه او بیا یې ورته وویل. ته باید ما وپېژنې زما نوم شاعلي نا کلي پل دی او ته به وروسته له دې هغه څه کوې چې زه یې درته وایم پوه شوې که نه؟

بیا یې هغه ته وویل چې د دکان کړکۍ خلاصه کړه او په ماښپ راځه څه

چې هغه ورته وویل او اولیور تویست هماغسې وکړل او غلی په ناکلي پل پسې روان
شو ، ناکلي پل آشپزخانې ته ورسېده هلته شارلوت هم ناسته وه هغې د ناکلي
پل او خان لپاره د سپارناري چای کړی و . اولیور تویست ته یې یوه پیاله چای او
دوه پوړۍ یو ټوټه ورکړه او ورته وې ویل چې دوه ډۍ ژر ژر وخوره او بیا لاړ شه
تر هغې چې موږ درځو د دکان ته پام کوه .

اولیور تویست فکر کاوه چې په دې کور کې به لږ په نس موړشي او د مرستون
له په دلته دوه ډۍ لږ شاته ډېره وې خو اوس په دې پوه شو چې له بارانه ناوې
ته راغلی دی هره ورځ به د دوه ډۍ وچ ټوټه ورکوي چې په ډېرو ، ژوولو به
یې ژامه ستړې شوه په لږه موده کې یې د لوږې او زیات کار د له لاسه رنګ
سپین سوار شو ، په ښار کې به چې ګرځېده ، خلك مړه کېدل او تابوت به یې د ساوربري-
یري له دوکان له اخیسته اولیور تویست به ارو مرو له هغه سره ښتك او ښخونه
په لاس کې روان و دا کار سره له دې چې دا اولیور تویست په عمر ماشکانو ته خورا
ګوروونکی او ستومانه کوونکی دی خو د خوار کی به بیا هم هغه ته وویل ځکه
په کومه ورځ به چې دی د مړي له تابوت سره له دوکانه تلو که نوره ګه خوښي
نه وه په برخه کېده نو لږ تر لږه خو به د ساوربري د سمکو سوو رو خبرو او
همدارنګه د ناکلي پل او شارلوت له وهلو ټکولو څخه ژغوره و .

دده ژوند په همدې اې خوندی تېرېده . په دې کې یوه ورځ داسې پېښه وشوه
چې دی له دې ځایه هم تللو ته اړ شو . پېښه داسې وه : چې ناکلي پل به اولیور تویست
هره ورځ وهلو او ګورولو تر هغې چې په ژړا شو خو یوه ورځ چې هغه هرڅو سره
اولیور تویست له وېښتانو کش کړو او که به یې غوږونه ورتاو کړه د هغه له
خولې چن هم ونه وتلو او دت په ګېر غلی ولاړ په پای کې ناکلي پل هغه ته
وویل . ته د ډېرې بدې ښځې زوی یې ، اولیور تویست ددې خبرې په اورېدو سور
واووجت او په ډېره غوسه یې پوښتنه ځنې وکړ چې څه دې وویل ؟ ناکلي پل په سپړه سینه
ورته بیا هم وویل چې ستا مور ډېره بده وه په وشوچې مړه شو ، که نه هغې به هم
اوس ستا په څېر لوږې او کړاو ونه زغمل ، اولیور تویست چې لا د مخه هم له غوسې
سور و شین کېده او د ناکلي پل له ناوړه چال چلند نه پوزې ته راغلی و ددې خبرو

په اوربدو يې په هغه ور توپ کړه او په دواړو لاسو يې له ستونې کلکه ونيوه او
په ځمکه يې راغورځاوه کړ او په گونډو يې په سينه کې وواهه. ناکلي پل چې
په هيڅ ډول د اولپور توپست له لاسه د داسې پيښې انتظار نه درلود له ويرې يې چيغې
کړې په تېره هغه وخت چې د اولپور توپست سترگو ته يې پام شو چې له غوسې نه سرې
سرې اوښتې وې، د ناکلي پل په چيغو نارو شالوت او ساور پېرې دواړه راورسېدل
او هغه خوارکی يې په درې وارو په وډ باوه او بيا يې په زېرخانه کې بندي کړ.
ناکلي پل چې څنگه له دې کاره خلاص شو نو د سر ستون په لوري په بېړه پسې منډه
کړه او ورته وې ويل چې اولپور توپست غواړي چې موږ درې واړه ووژني، بېړه
هغه ته وويل چې که دا کار يې کړی وي نو څومره موجب له لاسه کېږي هغومره
يې ووهی داسې چې د ژوند تر پايه يې هم له پادوونه وځی.

ماښام مهکې له دې نه چې اولپور توپست بېده شي له زېرخانې څخه يې راوايستلو
او درې وارو په گډه دومره په ستروکو وواهه چې له آده باده يې وکيښ او
د ملاستې له پاره يې بېرته د دکان هماغه تابوت ته راوست چې د مخه
به پکې بېده کېده او لپور توپست چې د واړي په تپه تياره او
ويرونکي تابوت کې پروت و له ځان سره يې ډول ډول چورتونه
وهل چې څه وکړي وروسته له ډېرو فکرونو يې ځان سره پرېکړه وکړه په هر
ډول کېږي بايد له دغه ځايه وتښتي. اولپور توپست په همدې چورتونو کې
خوب وړی سهار چې لمر څېره ووهله اولپور توپست له خوبه راپورته شو وور يې
د دکان ور پرانيست پوه شو او بله خوا يې وکتل ډاډه شو چې څوک نشته نو ور يې
ور بېرته پورې کړ او وتښتېدو ته يې ځان چمتو کړ څو شيبه اولپور توپست په پوره
سا څغاستل تر هغې چې يوه ځای ته ورسېده هلته د دمې کولو له پاره ابسار شو، په
ځای باندې د ميل په حساب دوا ټن «فاصله» اندازه له دغه ځايه تر لندن پورې
په ليکل شوي وه اولپور توپست چې هغه ولوسته نو پوه شو چې تر لندن پورې او-
يا ميله لار نوره هم پاتې ده هغه له ځان سره هوډ وکړ چې په هر ډول کېږي
لندن ته به ځان رسوي. په دغه ورځ هغه په دمه وځل ميله لارې ووهله هغه د
شپې د يوه کلي تر څنگه د وچوله بوټې ډېرې لاندې پټ شو سهار دوخته راپورته

شو لمر لا نه و، راختلی چې بیا یې په مزل پیل وکړ اووه ورځې یې له یوې او لیور -
توپست په همدې ډول په مزله تېرې کړې په کلیو کې به یې اوبه او کوم توك
وچه ډوډۍ په سوال وغوښتله او هره ورځ به یې حوصله لاره وهله یوه ورځ چې یو
کلي ته ورسېده او نو یکي دروازه وخوا کټ نه وه تې شوی تږدې و چې په ځمکه
راوغورځېږي د یوه کور دروازه په زینه کښېناسته د ده له مخې یو ملك تېر شو چې
یو څو گامه ور وسته بېرته راوګرځېده او ورته یې څېرڅېر کتل، او لیور توپست
هم چې دغه ملك ته وکتل نو د بریل شان ورته ښکاره شو د ده تراوسه دغسې نمونه
ملك نه و لیدلی، بوچه پوزه یې وه او مخ یې دومره څیرن و چې هغه د چا خبره
یوه پېشوای په ښتلو مرید له یوښې یې هم د لیندی په څېر کږې او لنډی وې، سترګې
یې د مار په څېر وړې او تېزې وې سره له دې هم دی خاندنه ډېر ښاو ره او په نخرور -
وان و، د یوغټ سړي زوړ بالاپوښ یې اغوستی و چې ان تر پوند وی رسېده لستو نی
یې نغاړلی وو چې لاسونه یې یکې پټ نشي اوسر بېره پر دې وکولی شي چې د خمل
ښکاري بخمل د پطلون په جیبو کې لاسونه ننه باسي دی چې راغی نو په دې کړ و
وروا او لیور توپست مخکې ودرېد او پوښتنه یې څینې وکړه: «ای ملکه ها یاې خوا ته
دا شور ما شور د څه دی؟» او لیور توپست چې لوږې نه پرته یې نور هیڅ هم نه پام
نه و او سمد لاسه یې ورته وویل. زه ډېر روږی او ستړی یم زښت زیات مزل مې
کړی دی هغه بیا ترې پوښتنه وکړه لندن ته ځې؟ او لیور توپست ځواب ور کړ
بلې صیب. دلاوړ څه توښه دې ځان سره را اخستې ده له صوب؟

ښه نو زه دلته یو زوړ سړی پېژنم هغه ډېر مهربانه او زړه سواندی دی هرچا ته ډېو
څه وخت لپاره ځای ورکوي خو په دې شرط چې هغه ځوك ور وپېژني او ورته ووایي
چې دا سړی خوار او بېوزلی دی څه نلري، بیا یې ژر له هغه نه پوښتنه وکړه، چې
ستانوم څه دی؟ زمانوم او لیور توپست دی صیب، ښه دا خو ډېر ښه لقب دی اصل
نوم دې څه دی؟ او لیور توپست ورته وویل صیب همدا زما نوم دی چې مخکې مې
ووېل. هغه ور ته وویل زه ډېر نوموړی ارم خصوصي نومې داو کنزدی خو ملګري مې
را ته ارتفل ډجر وایې داو کمفر، او لیور توپست ته وویل چې مخکې له ماښام نه
د لندن ښار ته تګ ښه نه دی دوی تر ډېره پورې همدلته انتظار وکښي چې ښه

تیاره شوه نو بیا د لندن د ښار په لور وخوځېدل کله چې دا پس لنګټن لوی لارې
ته ورسېدل نو د شپې یوولس بجې وې. ډجر په ډېره وارخطائي شا ته مېلټ ته کتل
او تند تند ګامونه یې اوچتول تر هغې چې یوه څېرن او خپل کور ته
ورسېدل ډجر دروازه خلاصه کړه او په تیاره تیاره کې او لیور توېست ځان پسې
کښولو چې یوې خونې ته ننوتل دیوالونه یې اوچت او تنګ نور او وېښتي و
د ډېر زوړښت له امله په دیوالونو کې درزونه پیدا شوي وو په خونه کې یو خیرن
مېز د اور بلولو ځای ته نږدې ایښودل شوی و د مېز تر څنګ یو زوړ سړی چې د مخ ګونځې
یې د ډېرې په سرو ګلوړو وېښتانو پوښل شوي وې او د پلالین یوه غوړه چپنه
یې هم اغوستې وه ولاړ وه هغه لګیا و ساسیچ یې پخول د اولیور توېست چې د کالیو
ایښودلو ځای ته پام شو نو وې لیدل چې بې شمېره وریښمین دستمالونه هلته
را ځوړند دي، د مېز شاوخوا څلور پنځه هلکان نور هم ناست وو چې پایپونه یې
څکول دوی چې ډجر ولید نو غوږونه یې را ټول شول ډجر په دې وخت کې هغه
زاړه سړي ته په غوږ کې ورو پسېده وروسته له دې چې هغوی د ډجر او زاړه سړي
خبرو ته غوږ ونیوه ټولو اولیور توېست ته خوږ خوږ وکتل په دې وخت کې ډجر
سپین ږیري سړي ته ووېل ! «دا زما ملګری اولیور توېست دی» فاګین
چې اولیور توېست ته وکتل نو سترګې یې له خوښۍ وځلېدې او له ځان
سره یې وسمول بیا نو په داسې حال کې چې په خپله غوړه چپنه یې لاس وهلو
سر یې د احترام په توګه لږ شا ته ټیټ کړ وې ووېل : زه ډېر خوښ شوم چې ته
مې ولیدې اولیور توېست ته ډجر یو څو ساسیچه راواخیستل او په یوه لوښي کې
یې د اولیور توېست مخې ته کېښودل اولیور توېست اریان و چې دا دومره ډېر
وریښمین دستمالونه دوی څه کوي او له کومه یې کړي دي ډجر ور ته ووېل ته
لکه چې دې دستمالونو ته اریان یې دا خو موږ دلته د ډېر مینځلو لپاره راوړي
دي کومه بله خبره پکې نشته . اولیور توېست او نور هلکان د ماښام ډوډۍ ته سره
یو ځای کیناستل هغه خپله برخه ډوډۍ په ډېر خوند وخوړه ځکه چې د ډېرې
مودې وږی و . وروسته د الو مړی محل و چې هغه په مړه ګېډه ډوډۍ خوړله فاګین
هغه ته په اوبو کې یو ډول شراب ورګډ کړل او ، اولیور توېست هم یې له

دي له چې پوه شي هغه اې وچښل شيبه لا نه وه تېره شوي چې په او ليور تويست باندې سر دروند شو او سترګې اې پټې پټې کېدلې خوب پرې غلبه وکړه او په پوه ځای کې بېده شو .

سهار چې اوليور تويست له خوبه راويښ شو نو پوه خواو بله خوا اې وکتل پرته له فاګين نه په خونه کې بل څوك نه و هغه پوه شو چې په خونه کې له فاګين نه پرته بېګاه شپه سا سره نور څوك نه وو فاګين د ده مخې ته ناست و او پو صندوق اې خلاص کړی وچې ټول د قيمت بيا ساعتونو او د نصوارو دو بلبو نه چې قيمتي غمی پکې لګېدلي و ډك و، ناڅاپه د فاګين او اوليور تويست سترګې سره پو په بل ولګېدې. فاګين سمدلاسه صندوق په خپل پورې کېښود او اوليور تويست ته يې په قهر چن اواز پوښتنه وکړه څه شی ته داسې ځېر ځېر ګورې ؟ولې راويښ شوی؟ فاګين داپو ښتنې پر له پسې په ډېره غوسه وکړې اوليور تويست ورته پېدېره وېره ځواب ورکړ (صيب ما ته نور خوب نه راتلو نو ځکه راويښ شوم زه ډېره بښنه غواړم ) فاګين په داسې حال کې چې لاس يې د صندوق پر پوښ برسېره کلك اېښی و او اوليور تويست نه اې پوښتنه وکړه ايا تا هغه څه چې په بکس کې وو، وليدل؟ اوليور تويست ځواب ورکړ هوصيب فاګين ورته وويل دا ټول زما دي دامی د دې لپاره ساتلي چې سپين ږيری توب کې پرې خپه ژوند تېر کړی شم زما ټوله هستي او نيستي همدغه وه چې تا وليده، خلك ما ته ليستمن وائي .

اوليور تويست داسې فکر وکړ چې فاګين به په رښتيا هم ليستمن وي که نه نو په داسې خير نه خونه کې به يې شپې ورځې نه تېرولې خو بيا يې فکر وکړ چې دی دومره جوهرات لري او بيا هم ځانته ليستمن وائي ، د اوليور تويست سر په دې خبره نه خلاصېده خو بيا يې له ځان سره فکر وکړ چې فاګين خو له هلکانو سره ډېره مينه لري .

اوښا يې ده پسې به تو لې په همدغه لار خر څېږي له او ليور تويست نه پرته څو هلکان نور هم ملتيا وو خو اوليور تويست نه پوهېده چې فاګين ولې په هغوی دومره مهربانه دی او په کېده يې ساتي، فاګين ، په دغه وخت کې

او لیور توېست ته وویل چې د اوبو هغه منګی را واخله زه به لوښی ور ته راوړم مخ
به دې پاکې پرې مینځې. او لیور توېست راپورته شو چې په منګي پسې لاړ شي کله
چې هغه د منګي د راخستلو لپاره ورټیټ شو او منګي یې راپورته کړ نو ویې لیدل چې
فاګین د جواهراتو بکس سره ورک شوی او ډجر، هم خونې، ته راننوت یو بل هلک
هم چې چارلي نومېده له ډجر سره خونې ته راغی وروسته فاګین هم خونې ته
راننوت او څلور وارو په کېډه دسمال ر ټوډي ته کېښناستل، د چای څښلو په وخت کې
فاګین له ډجر او چارلي نه پوښتنه وکړه چې تر اوسه مو څه کول د خپلې دندې
ترسره کولو ته لاړ وی؟ او که بل چېرته؟ ډجر ور ته وویل ما دوه جېبي کتابونه
راپټ کړل او چارلي هم څلور ورېښمین دستمالونه لاس ته راوړي، چارلي
وویل ما خو د دسمالونو د پټولو په وخت کې ابروګل دم وخوړل یو سړی را
باندې شکمن شوی و د خبرو خلاصولو نه وروسته ئې څلور وارو دستمالونه فاګین
ته وښودل، فاګین وویل. دا خو ډېر ښکلي دستمالونه دي خو بابه چې تا یې د را-
خستلو په وخت کې ښه پام کړی وي مونږ به او لیور توېست ته هم ځه چلونه
په ښه شان ورزده کړو.

بوشیبه وروسته چې دوی ډوډی خوړلو او قهوې څښلو نه وزګار شول دوی د او-
لیور توېست د خوښی او ددې لپاره چې هغه دم څه زده کړي وکړي یوه لوبه
اجرا کړه. لوبه دا ډول وه، چې فاګین خپل جېبونه په دستمالو نو او ځینې نورو شیانو نه ډک
کړل او په خونه کې داسې یو خوا او بله خوا ګرځېده راګرځېده تا به ویل چې د ښار په
یوه واټ کې د سودا اخیستلو لپاره روان دی او د خونې کوټې کړکۍ ته به داسې
ودرېده تا به وي چې ګنې د کوم دکان مخې ته ولاړ دی او څه شی په اخلي. ډجر
او چارلي ورپسې دي چې د ده له جېب څخه شی راوباسي البته په داسې ډول
چې دی پرې پوه نشي که به دی پرې پوه شو نو بیا به یې د خپل ماسوچ په خولو
په پنجه ښه کلک کلک په تشو کې چو خول چې بیا داسې یې پاسی ځنې ونشي
دی بله بیا په همدې ډول مخکې واو هغوی به ورپسې وو، او په دد وه ښځو به
راننوتلو چې یوه بیت او بله نانسی نومېده احلال شوه هغه ښځې ډېرې خوشحاله
ښکار پدې او ډېر زیات یې خندل فاګین هغوی ته یو څو روپۍ ور کړې چې ښار ته

لاړې شي. او څه یې چې زړه غواړي هغه پرې واخلي او خپل ساعت تېر کړي او لیو-
ر توبست هم غوښتل چې پخپله سره بازار ته ولاړ شي خو فاګین پرې نښود، وو ته
وې ویل چې لومړی باید ته زده کړې بیا هره ورځ کولی شې چې بهار ته ولاړ شې.
کله چې بېټ او نانسي بهار ته لاړې نو د دوی پر ته یوازې شول فاګین غوښتل چې
لوبه له سره بیا پیل کړي نو اولیور توبست ته یې وویل، ما پسې را روان شه! زه
وګورم چې ته کولی شې چې زما دسمال پټ کړې او که نه، خو په دې شرط چې
زه دې پا نه دې پوه نه شم فاګین بیا هم د پخوا په څېر په خونه کې په ګرځېدو راګرځېدو
پیل وکړ اولیور توبست په ډېر مهارت او چالاکۍ د ده له جېب څخه دسمال
وایستلو یې له دې نه چې دی پوه شي کله چې اولیور توبست فاګین ته غږ وکړ چې
دسمال مې درڅخه اخیستی فاګین ولیده چې دسمال د اولیور توبست په لاس کې
دی نو له ډېرې اریانتیانه هک پک شو فاګین د اولیور توبست په دې کار ډېر خوښ
شو او هغه ته یې وویل. ته ډېر هوښیار او چالاک هلک یې ما تراوسه پورې ستا په
څېر بام لرونکی هلک نه دی لیدلی واخله دا یو شلنګ دا ته بخشش درکوم، که
له په همدې ډول په خپل کار کې پرمخ ولاړشې نو ته به دومره چالاک او هوښیار
شې کله څومره چې تجردی ته باید په دې کار کې د تجر په پله پل کېږدې او
هرڅه له هغه نه زده کړې زه باور لرم چې ته به په دې کار کې د وخت په تېرېدو
سره د لوړ نوم ونښان څښتن شی زه به تا ته په دې برخه کې نور هم ډېر څه در
زده کړم.

فاګین به هره ورځ اولیور توبست ته د جېب وهنې په هکله لوی چلونه او
مېتودونه ورښوول، او بیا به ئې عملاً له هغه څخه ازموینه اخیستله دی. په سخکې
شو اولیور توبست به یې شاته غلی روان و څنګه به چې هغه ورښوولی و په هماغه
ډول به یې د هغه له جېب څخه دسمال ایستې او نور څه غلا کول به دې کار کې
ډېرې ورځې تېرې شوې فاګین په دې خبره پوه شو چې، که اوس اولیور توبست
بهار ته په جېب شکولو پسې ولېږم او د بري چانس یې ډېر دی اولیور توبست هم چې
هره ورځ به یې په همدې یوه کوټه کې همدغه یوه لوبه تکرار و له او بهر ته
بیخي د تلو نه و ډېره تلوسه یې وه، چې بهر بهار ته لاړشي فاګین هم چې ولیدل

اولیور تویست اوس ښه تکړه شوی او د ښهر تللو اجازه یې ورکړه، اولیور تویست
د چارلي او د جیمز سره ښار ته ولاړ، دوی دري واړه د ښار په یوه ځلور
لارې کې چې کارکوونکي ګرځي او ګڼه یې ډېره وه خوا او بله خوا ګرځېدل چې سترګې یې
پر یوه ماړه سړي چې سپین پطلون او شین بالاپوش یې اغوستی وو ولګېدې د لاس یوه
ښکلې امسا یې هم په تخرګ کې نیولې وه او د کتاب پلورونکي د دوکان په مخکې
ودرېده ډجر، چارلي او اولیور تویست ته وویل چې دغه سړي ته به ځان ورورسوو.
ډجر په چالاکۍ او مهارت د دغه سړي ترڅنګ ودرېده او د هغه وریښمین دستمال یې
ځنې را واخیست او دسترګو په رپ کې یې چارلي ته ورکړ چې د ډجر ترشا ولاړ و.
اولیور تویست اوس پوه شو چې د فاګین په کوټه کې وریښمین دستمالونه د نصوار ـ
وجواهر نشان ډبلې او ساعتونه له کومه شوي وو.

اولیور تویست په دغه وخت کې خورا وډارېده ډجر او چارلي په خپله مخه
ولاړل اولیور تویست هم په هغو پسې په منډه پیل وکړ په همدغه شېبه کې د دغه
سړي هم خپل جېب ته لاس شو چې دستمال یې نشته هغه چې یوه خوا او بله خوا
مخ واړه وه نو اولیور تویست یې ولیده چې منډې وهي فکر یې وکړ چې ښایي
دستمال به همده را څخه پټ کړی وي نو ژر یې ځارندویانو ته ناري کړې چې دغه
غل را ونیسی او خپله یې هم په داسې حال کې چې کتاب یې په لاس کې وو پسې
منډه کړه په دې وخت کې ډجر او چارلي له لارې څخه ځان یوه کوڅه ته ګوښه کړ
او یوه بل ته یې سره وویل چې د خلکو په ګڼه ګوڼه کې به ځو او ته هم ورننوزو
او ناري کړو چې غل را ونیسی، دوی همدا کار وکړ او د هغو خلکو او ځارندویو
سره یو ځای شول چې په غله پسې یې منډې وهلې. اولیور تویست چې
دا دومره ډېر خلک ولیدل چې ټول په ده پسې منډې وهي نو ډېر وارخطا شو

او ناڅاپه په لار کې ولوېده په خاورو خټو لړت پت شو لوېدو په وخت کې
سخت ژوبل شو خلک ترې راچاپېر شول یوه ځارندوی هغه په پښه ودروه او
را پورته یې کړ او له ځان سره یې په کشولو کشولو د پولیسو دفتر ته بوته د
دستمال څښتن هم ورسره وه.
د پولیسو په دفتر کې سره له دې چې اولیور تویست ریښتیا ویل خو بیا هم هیڅا

د هغه په خبره باور وله کړ سر ئې ور پرېښود او ویلو کله چې داولیور توېست جوړ نه وله شول د ستمال هم ورسره پیدا شو خو بیا هم د پولیسو محکمې دې اړې نه وو د اوامرو او کړ چې دې ماشوم ته بندي کړي او محکمې له دې نه چې په کو ته کې واچوي په ستړو کوي په سمه توګه به کلک کلک ووایه. د محکمې د دغه حکم په اورېدلو د کتاب خرڅوونکي چې د ا پېښه ئې په محکمې تېره شوې را پورته شو او وې ویل چې زه کولی شم چې د دغه هلک بېګناهي ثابته کړم ځکه ما په خپله هغه هلک چې د دغه ښاغلي د ستمال ئې له جېبه وکښل او لیده او په ډېره چالاکۍ ئې په خلکو کې ځان ورک کړ. دا هلک بې ګناه دی محکمې د کتاب خرڅوونکي خبره ومنله او اولیور توېست ئې خوشې کړ.

مستر برونلو د دستمال څښتن په دې خبره خورا خوشاله شو او د کتاب خرڅوونکي نه ئې د هغه د کتاب بیه ورکړه او په خپله ئې یوه ګاډۍ کرایه کړه او اولیور توېست ئې هم چې د اوږدې لوږې په وخت کې زخمي شوی و له ځان سره بې ګناه او کور ته روان شول.

کله چې د مستر برونلو کور ته ورسېدل نو اولیور توېست په لار کې بېسده شوی و، برونلو هغه سمدلاسه یوې خونې ته ننویست یوه زړه ښځه چې ده ته به ئې چوپړ کاوه را وغوښتله او ورته وې ویل ترڅو چې زه ډاکټر را ولم ته په د ده ښه پاملرنه کوې. ډاکټر چې راغی او اولیور توېست ئې معاینه کړ، وې ویل چې دده اوس ډېره سخته تبه ده خو امید شته چې ډېر ژر به ښه شي دوه ورځې پر له پسې او اولیور توېست د مرګ او ژوند تر منځ د سوزنده تبې له امله لاس او پښې وهلې خو په پای کې د ډاکټر په ډېره پاملرنه په هغه کې ساه وڅرېدله او سترګې ئې پرانیستلې. په درېیمه ورځ هغه ایله په دې بریالی شو چې له کټ څخه را ښکته شي او په خوکۍ کېني.

په دغه خونه کې چې اولیور توېست د ناروغتیا په حال کې پروت و د یوې ښځې تصویر هم ځړول شوی و، ده به تل تصویر ته کتل او ویل به ئې چې د دې تصویر په څېر ښکلې ښځه ما تر اوسه هېڅ چېرې هم نه ده لیدلې له کوم وخت راهیسې چې ده سترګې غړولې وې نو یوه شېبه هم ده له دغه تصویر څخه سترګې نه لرې کولې تر

نشوې اروالی، سور من پهلوان چې د ده ( پرستاره ) وه هغې هم د دې تصویر
په هکله د ده سره څه نه وو ویلي په دغه ورځ چې دوی وارو خوشحال چې د تصویر
په هکله خبرې سره وکړې ناڅاپه دروازه وټکېده سور من پهلوان دروازه پرانستله
او مسټر برونلو دننه راغی د هغه زړه ډېر خوشحال چې دا او لیور توېست د ژوند
په کیسه پوه شي خو هغه ولیدل چې په اولیور لیورتوېست بیاد تبې سخته څپه راغله
او سترګې یې پټې شوې تو له وجود یې د تبې له تاوه رپېده. کله کله به ئې
په خوب کې اېلاتې هم وېلې نو هغه له ځان سره داو پتېله چې تر هغو به اولیور توېست
خېر و او پېرو تلو ته نه پرېږدي ترڅو پېښې به شوی نه وي. بله ورځ د مسټر برونلو
او لیورتوېست ته پام شو چې کله سترګې وغړوي نو بیله دغه ښځینه تصویر څخه
بل څه ته نه ګوري او تر هغه ورته ځیر ځیر ګوري تر څو ئې بیادتبې او د رد له
زوره سترګې پټې شي کله چې مسټر برونلو په پوره پاملرنه
تصویر او بیا اولیور توېست ته وکتل. نو هغه ولیدل چې دا اولیور توېست سترګې
خوله، پزه مخ او نور ټول شیان کټ مټ د همدغه ښځینه تصویر په څېر دي
مسټر برونلو د تصویر او اولیور توېست زیات ورته والي ته بالکل هیښ
پاتې شوی و.

برونلو ته په ناڅاپي ډول هغه په زړه شول او ټکان ئې وخوړ، له دې سره سم ئې
له خولې یوه ناڅاپي چیغه هم ووتله دغې ناڅاپي چیغې اولیور توېست دومره
وېراوه لکه څوک چې په ناڅاپي ډول تیاره خونه کې چا ته په وحشیانه توګه
(پخ) وکړي او هغه له وېرې بې سده شي، اولیور توېست کې هم د برونلو په دې
ناڅاپي کړیکه بې هوښه شو خو کله چې بېرته په سد شو او شا او خوا یې وکتل
نو وې لیدل چې نه یوازې دا چې برونلو په خونه کې نشته بلکې تصویر ئې هم
له ځان سره وړی دی. اولیور توېست سملاسي له زړې پرستارې څخه پوښتنه وکړه
چې تصویر له دې خونې څخه چا وړی دی؟ او ولې ئې وړی دی؟ هغې سملاسي
ځواب ورکړ ته مه خپه کېږه. برونلو داسې فکر وکړ چې د دې تصویر ته کتل
تا ځوروي نو ځکه ئې هغه لېرې کړ. اولیور توېست ووېل: نه داسې نه ده هغه
تصویر ته کتل هېڅکله ما نه ځوروي زه له هغه تصویر سره لېوالتیا لرم. زړې

پرستاري ورته وویل . خیر دی خپه کیږه مه چې شه شوي پیا به هغه تصویر
بیرته ستا لپاره هم دلته وځړوو .

کله چې اولیور توېست له لاور څېټا څخه بېله شو نو دی ډېر خوشاله وچې له
هغه مصیبت څخه را خلاص شوی دی او کله چې دی به دې پوه شو چې بروانلو دی
په خپل کور کی د خپل زوی په صفت له ځان سره ورېږدې نو خوشې ئي لا بېسي
زیاته شوه .

یوه ورځ چې اولیور توېست په روغ رمټ شوی واوله بروانلو سره د هغه د مطالعې
په خونه کی ناست و، میرمن بیډوین د کتابونو یو پارسل د مطالعې خونې ته راووړ
چې بروانلو د مخه له هماغه کتاب پلورونکی څخه اخستی وو چه د مخه مو یې یاد
کړ. بروانلو میرمن بیډوین ته وروېغ کړل چې د کتابونو د پارسل راوړونکی
هلك ته ووایه چې لیرا یسار شی دلته یوڅو کتابونه دي دا به هم ځان سره یوسي.
میرمن ورته وویل هغه چې څنګه کتابونه کیښودل نو سمدلاسه بیرته لاړ. د برو-
انلو تندی په دې خبره لږ تریو څولدی شو، اولیور توېست چې هغه ته و کتل اوژر ئې
ورته وویل دا کار خو زه هم کولی شم د بروانلو تندی وغوړېده او ورته وې ویل.
ښه چې ته ئې ورلی شې نو دا کتابونه درسره واخله او کتاب پلورونکی ته به
ووایې چې دا کتابونه می بیرته راوړل او دا د پنځو پونډو نوټ واخله دا هم
هماغه کتاب پلورونکی ته ور کړه لس شلینګه بیرته ځنی راوړه . او لیور توېست په
ډېره خوښی ورته وویل زه به په لس دقیقو کی په منډه را ورسیږم هغه له خوښی
نه په کالیو کې نه ځائیده، دا ځکه چې د لومړي ځل لپاره ده د هغه چا لپاره یو
کار سر ته رساوه چې له ده سره یې ډېره مرسته کړی وه. نوټ یې ژر ژر په لاس
کی ومروړه او د خپل نوي جاکټ په جیب کې چې بروانلو ورته اخیستی و په
پوره پاملرنه کېښوده چې په لاره کی ځنې ورك نه شی، کتابونه ئې هم په تخرګ
کی ونیول داسی ژر ژر روان و چې پښې یې زمکی ته نه ور تللې هغه دا څه کوله خو مره
چې ژر کیږی دی باید بیرته کورته ورسیږی تر څو بروانلو ده په چالاکی آفرین
او شاباسی ووایې خو کله چې دی کار کینول ته ورسیده هلته تر پنه لار غلط شوه
او په یوه ارمی سړك روان شو هغه ډېر ژر ګامونه پورته کول او په دی فکر و-

نو کې پروت وچې زه به په دې کور کې څومره ښه ژوند تېروم او د کور خاوند
او خدمتګاره دواړه څومره زړه سوانده او مهربانه خلک دي. او لېور توپست په
ډېره خوښي او د کتاب پلورونکي د دکان په لور لاړ لنډ و له چې په لارکې یوې
ځوانې ښځې پرې چغ وکړ اوه! زما ګرانه ورور! دا چېرته وې؟ د دې خبرې د خلاصېدو
سره سم هغې ښځې او لېور توپست د خپلو لاسونو په کړی را ایسار کړ. کله چې
او لېور توپست د هغې ښځې د لاسونو له د ځان خلاصولو لوا کام کوشش کولو هغې
بیا په لوړ او ازارې کړې اې شیطانه هلکه! څنګه اوس بیا ځان را نه خلاصوې
راځه چې کورته دې بوزم د مور دې له ژړا نه سترګې د ربڼې سپینې شوې په ده
چې دلته مې پیدا کړې که نه موږ به په تاسې کوم وطن ته لټول.

یوه وله ښځه چې په دې وخت کې د دوی تر څنګه تېرېده له پوښتنه یې وکړه
څه خبره ده؟ هغه ښځې چې او لېور توپست ئې په دواړو لاسو کلک نیولی وژړ
ځواب ورکړ هیڅ خبره نشته درنې مورمې دا زما ورور دی څه موده د مخه له
کوره تښتېدلی و زموږ ډېره شرېفه کورنی ده تل په خپلو کارو نو بوخت یو. دی
له کوره وتښتېده او له بوخوجب و څونکو سره ملګری شوی وو اوس مې پیدا
کړ د مور او پلار له زړه به مې بوخدای خبر وي چې ګرځوئي دی له وی لېدلی
څه به پرې تېرېږي هغې ښځې هم او لېور توپست ته مخ ورواړوه او وئی وېل
ای ځوانه نیمرګه! داسې هم څوک کوی چې سم دم کور پرېږدي او په غلاوو پسې
سرشي، او لېور توپست چې داسې پېښې سره مخامخ کېدل ئې په خوب او خیال کې
هم نه تېرېدل له ډېرې غوسې ئې نارې کړې دا ښځه سوچ دروغ وائي زه نه خور
لرم نه پلار او نه مور زه یتیم یم و الله که مې مور او پلار تر اوسه لا په خوب
کې هم لیدلي وي په وېښه خوئي لا څه کوي. هغه ښځې چې او لېور توپست کلکه
نیولی و نورو لارو یو ته ئې مخ وواړاوه او وې وېل وګورئ دی بیا په دې
څوور ځو کې چې له کوره تښتېدلی دی څومره زړور شوی او ژبه ئې څومره تېره
شوې ده د خبرې له خلاصېدو سره سم ئې نور هم پسې کلک کړ او په سرئې یوګوز-
ارهم ورکړ. اولېور توپست ځان یوه خوا او بله خوا کاوه تر څو د هغې ښځې مخ
چې دې یې د شاله خوا کلک نیولی وو ونې کله یې چې د ښځې مخ ته وکتل لور-

نګه ئې نو رحم پسې تنګ زړه او وخت او په ډنډه ډنډه ژبه یې وویل ته نانسي یې؟ نانسي شاوخوا خلکو ته وویل: ومو لیده چې دی ما پېژني زه د روغ ته وایم یوه سړی په دې وخت کې په کړس کړس وخندل (دغه سړی چې د مېوخر ځووانکی له دوکان ته یوه شیبه د مخه راکوز شوی و سترګې یې کږې وږې یوه خوا بله خوا غړولې او او سپین ږیرن سوی ئې هم ځان پسې راکشولو) وی وېل دا خو ډېر چالاکه ماله دی.

اولیور توېست په دې وخت کې هرې خوا ته د مرستې او کومک لپاره سوی - سوی ناری وهلې خو هیڅا هم پرې باور نه کاوه چې دی به د نانسي ورور نه وي نانسي په دې وخت کې یوه بل سړي ته چې بل نومیده وړغږ کړل چې دلته راشه دغه دی اولیور توېست مې پیدا کړ ښه شو چې ټول کور مو له لاسه ندی نه خلاص شو. اولیور توېست بیا هم د مرستې لپاره هرې خوا نارې وهلې او په خورا هیله مندو سترګو یې شاوخوا خلکو ته کتل ګوندې کوم یو را وړاندې شي او په خبره ئې باور وکړي په دې وخت کې بل راوړاندې شو او اولیور توېست ته یې په سر یو کلک ګوزار ورکړ او وې وېل: اوس نو د کتابو نو غلا هم کوې راکه دا کتابونه ما ته او بیا یې هغه کتابو نه چې هغه له تخرګ لاندې کلک نیولي وو ځنې واخیستل. اولیور توېست په ژړاغوني اواز وویل: ته څوک یې چې ما وهې زه تا نه پېژنم بل په مسخند ورته وویل: ته ما نه پېژنې؟ ښه، پروانه لري وبه مې پېژنې، ته اوس دومره شوی چې بل ما یکز هم نه پېژنې، بیا یې یوه ورو ورو ټکې خندا وکړه او نانسي ته یې مخ ور واړوه زما ګرانې نانسي دی «اشاره اولیور - توېست ته» اوس ما نه پېژني بیا یې په ډېر بې خونده ډول په کړس کړس وخندل. دو عجیب الخلقة سړی و د یوه وحشي او ځناور سره یې په خوی یو ی کې هیڅ توپیر نه و د ځیر او شډل تو کر سپین بالاپوښ یې په تن و او د ښکاری بخمل لنډ پطلون یې اغوستی و په اولیور توېست امر وکړ چې راځه راپسې چنګړ ماره! اما یې نو خپل ځیروونکی سپی ته وویل چې اولیور توېست درڅخه ونه تښتي.

(نور بیا)

# پته :

دافغانستان دعلوموا کاډیمی
دژبو او ادبیاتو انستیتوت
کابل مجله
کابل ، افغانستان

دکابل مجلې دټیلفون نمبر ۲۱۷۱۶

## دګډون بیه

| | |
|---|---|
| په کابل کې | ۵۰ - افغانی |
| دهیوادپه نورو برخو کې | ۶۰ - افغانی |
| زده کوونکو ته | نیمه بیه |
| په باندنیو هیوادو کې ځمکنی: | ۵ - امریکایی ډالره |
| په باندنیو هیوادو کې هوایی | ۸ : ډالره |

# Kabul




Monthly Journal

of

THE ACADEMY OF SCIENCES

OF

AFGHANISTAN

The Institute of

Languages and Literature

PASHTO TOLANA


Editor: Pohanyar Mohammad Saber

دولتي مطبعه